

د پوهنې وزارت
د تعلیمي نصاب د پراختیا، د ښوونکو د روزنې
د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تالیف لوی ریاست

# د ښوونکي لارښود
# اسلامي ښوونې او روزنې
## لومړي ټولګي




د چاپ کال: ۱۳۹۳هـ. ش.

د اسلامي ښوونې او روزنې
د ښوونکي لارښود
لومړي ټولګی





moe.curriculum@gmail.com






د پوهنې وزارت

د تعلیمي نصاب د پراختیا او د ښوونکو

د روزنې معینیت

د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي

کتابونو د تالیف لوی ریاست


# د ښوونکي کتاب

# د اسلامي ښوونې او روزنې د تدریس لارښود

## لومړی ټولګی


د چاپ کال: ۱۳۹۳هـ. ش.




**مؤلفین**

- گل آقا «شائق»

**علمي او مسلکي ایډیټ**:

- محمد آصف کوچي د اسلامیاتو د څانګې مسوول.

**د ژبې ایډیټ**:

- عبدالهادی (روان)

**دیني، سیاسي او کلتوري کمیټه**:

- مولوی عبدالوکیل د تعلیمي نصاب د پراختیا ریاست علمي او مسلکي غړی
- محمد آصف کوچي د اسلامیاتو د څانګې مسوول.

**د څارنې کمیټه**:

- دکتور اسدالله محقق د تعلیمي نصاب، د ښوونکو د روزنې او د ساینس مرکز معین
- دکتور شیر علي ظریفي د تعلیمي نصاب د پراختیا د پروژې مسؤول
- د سرمؤلف مرستیال عبدالظاهر ګلستاني د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تالیف لوی رئیس.

**طرح او ډیزاین**:

- فیض محمد فیاض





## ملي سرود

دا وطن افغانستان دی — دا عزت د هر افغان دی

کور د سولې کور د تورې — هر بچی یې قهرمان دی

دا وطن د ټولو کور دی — د بلوخو د ازبکو

د پښتون او هزاره وو — د ترکمنو د تاجکو

ورسره عرب، ګوجر دي — پامیریان، نورستانیان

براهوي دي، قزلباش دي — هم ایماق، هم پشه یان

دا هیواد به تل ځلیږي — لکه لمر پر شنه آسمان

په سینه کې د آسیا به — لکه زړه وي جاویدان

نوم د حق مودی رهبر — وایو الله اکبر وایو الله اکبر

بسم الله الرحمن الرحیم

**د پوهنې د وزیر پیغام**

ګرانو استادانو او ښوونکو،

ښوونه او روزنه د هر هېواد د پراختیا او پرمختګ بنسټ جوړوي. تعلیمي نصاب د ښوونې او روزنې مهم توکی دی چې د علمي پرمختګ او ټولنې د اړتیاوو له مخې چمتوکېږي. څرګنده ده چې علمي پرمختګ او ټولنیزې اړتیاوې تل د بدلون په حال کې وي. له دې امله لازمه ده چې تعلیمي نصاب هم د وخت له غوښتنوسره سم علمي او رغنده پراختیا ومومي. البته نه ښايي چې تعلیمي نصاب د سیاسي بدلونونو او د اشخاصو د نظریو او هیلو تابع شي.

د ښوونکی د لارښود دا کتاب چې نن ستاسو په لاس کې دی، پر همدې بنسټ چمتو اوترتیب شوی دی. د تدریس د نویو میتودونو له مخې فعالیتونه او معلوماتي مواد په کې ورزیات شوي دي چې په ډاډ سره به د زده‌کړې په بهیر کې د زده‌کوونکو د فعال ساتلو لپاره ګټور او اغېزمن وي.

هیله من یم د دې کتاب منځپانګه، چې د فعالې زده‌کړې د میتودونو د کارولو له لارې تالیف او چمتو شوې، ستاسو درنو استادانو د ګټې وړ وګرځي. له فرصت څخه په استفادې د زده‌کوونکو له میندو او پلرونو څخه غوښتنه کېږي د خپلو لوڼو او زامنو په باکیفیته ښوونه او روزنه کې پرله پسې مرسته وکړي چې په دې توګه د پوهنې د نظام موخې او هیلې ترسره شي او ځوان نسل او هېواد ته ښې پایلې او بریاوې ور په برخه کړي.

زموږ ګران استادان او ښوونکي د تعلیمي نصاب په رغنده پلي کولو کې ستره دنده او دروند مسؤولیت لري.

د پوهنې وزارت تل زیار کاږي، چې د پوهنې تعلیمي نصاب د اسلام د سپېڅلي دین له بنسټونو او ارزښتونو، د ټولنې د څرګندو اړتیاوو، ملي ګټو او وطنپالنې له روحیې او د ساینس او تکنالوژۍ له نوو علمي معیارونو سره سم پراختیا ومومي.

ددې سترې ملي موخې د تر لاسه کولو لپاره د هېواد له ټولو علمي شخصیتونو، د ښوونې او روزنې له پوهانو او د زده‌کوونکو له میندو او پلرونو څخه هیله لرم، چې د خپلو نظریو او رغنده ګټورو وړاندیزونو له لار ې زموږ له مؤلفانو سره د درسي او د ښوونکي د لارښود کتابونو په لا ښه تالیف کې مرسته وکړي.

له ټولو هغو پوهانو څخه، چې ددغه کتاب په چمتو کولو او ترتیب کې یې برخه اخیستې او همدارنګه له ملي او نړیوالو درنو موسسو او نورو ملګرو هېوادونو څخه، چې د نوي تعلیمي نصاب په چمتو کولو او تدوین او د درسي او د ښوونکي د لارښود کتابونو په چاپ او وېش کې یې مادي یا معنوي مرسته کړې ده، مننه او درناوی کوم او د لا نورو مرستو هیله یې لرم.

ومن الله التوفیق

فاروق وردک

د افغانستان د اسلامي جمهوریت د پوهنې وزیر



# لړلیک

**لومړی: لوست**

## سرلیک: الله جلّ جلاله

**مخ: ۱**

**وخت: ۴۵ دقیقې**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- لوست په ښه توګه ولوستلای شي.
- د لوست د کلماتو حرفونه (توري) وښودلی شي.
- الله جلّ جلاله خپل پیداکوونکی وګڼي.

**اړینه پوهه:**

**د ځینو کلماتو معنا (ژباړه):**

الله جلّ جلاله : اسم ذات دی، حقیقي او برحق معبود ته ویل کېږي

عبادت: په لغت کې بندګي او لمانځنه. او په اصطلاح کې د نفس د غوښتنو پر خلاف، د خپل رب د تعظیم لپاره د مکلف کړه وړه دي .

وړ: لایق، مناسب

څېز: شی

بندګان: غلامان، لارویان.

الله جلّ جلاله ذاتي اسم دی چې ټول د کمال صفتونه پکې رانغښتي دي، الله جلّ جلاله یوازنې برحق او حقیقي معبود دی، هرڅه الله تعالی پیدا کړي او بیرته یې فنا کوي، ټول کاینات او مخلوقات الله ته اړ او محتاج دي او الله تعالی هیڅا ته اړ او محتاج نه دی. او الله جلّ جلاله د اخلاص په سورت کې په ډېره لوړه توګه معرفي شوی دی: (قُلْ هُوَ اللَّهُ أَحَدٌ * اللَّهُ الصَّمَدُ * لَمْ يَلِدْ وَلَمْ يُولَدْ *وَلَمْ يَكُن لَّهُ كُفُوًا أَحَدٌ).

یعنې ووایه ای محمده چې الله یو دی، الله بی نیازه دی، نه یې څوک زیږولي او نه له چا څخه زېږېدلی دی او نه هېڅ سیال لري.

**مرستندوی توکي:** کتاب، تباشیر، تخته او د الفباء چارتونه.

**د تدریس طریقه:** تشریحي، سوال، ځواب او ګروپي.

| وخت | د ښوونکي فعالیت | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| مقدمه ۵دقیقې | ښاغلی ښوونکی له سلام او حال احوال پوښتنې وروسته د لومړي ټولګي زده کوونکو ته خپل ځان وروپېژني او بیا د حاضرۍ له مخې د زده کوونکو له نومونو سره ځان آشنا کوي او ښوونځۍ ته د دوی راتګ ته ښه راغلاست وایي، درس ویلو ته یې تشویقوي او د لوست او لیک ګټې ورته ښیي او د نظافت او د ټولګي د نظم په هکله هم ورته لارښوونې کوي او ورته وایي چې په خپل وخت باید ټولګي ته حاضر شي او په خپلو درسونو کې زیار وباسي. | په مقدماتي چارو کې فعاله ونډه اخلي. لوست ورسره بدرګه کوي. |
| د لوست بهیر | بالآخره له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې زموږ او د نړۍ د کایناتو او موجوداتو پیداکوونکی څوک دی؟ | |
| | له ځواب اورېدلو وروسته ښوونکی د لومړي لوست سرلیک (الله جلّ جلاله) پر تخته | |

| | | |
|---|---|---|
| | ليکي.<br>وروسته لوست د کتاب له مخې په لوړ غږ لولي او ځيني کلمې لکه الله، پيداکوونکی، وړ، عبادت، څېز او بندګان په زده کوونکو باندې هجاء کوي يعنې د کلمو توري ور په ګوته کوي، مثلاً ورته وايي د اللهﷻ نوم له کومو تورو څخه جوړ شوی دی؟<br>بيا پر څو زده کوونکو لوست تکراروي او ښوونکی مرسته ورسره کوي.<br>بيا يو يو زده کوونکی تختې ته راغواړي او څنې کلمې ورباندې هجا کوي او ورته وايي څوک کولای شي چې: الله، عبادت، بندګان، څيز، يو يو په تخته وليکي. | |
| | **د لوست لنډيز:**<br>**موږ د اللهﷻ بندګان يو، الله تعالی د هر شي پيدا کوونکی دی. او د عبادت لايق هم دی دی.** | |
| | **ارزونه:**<br>• **د «اللهﷻ» کلمه له کومو توريو څخه جوړه ده؟**<br>• **د عبادت معنا څه ده؟**<br>• **موږ د چا بندګان يو؟**<br>• **د عبادت وړ ذات څوک دی؟ (**[1]**)** | **ځوابونه وايي.** |
| | **کورنۍ دنده:**<br>**زده کوونکي دې لومړی لوست په خپلو کتابچو کې وليکي.** | |

[1] ـــ له ښاغلی ښوونکی څخه يوه هيله: ښوونکی بايد دا ټينګار وکړي چې له کوم زده کوونکي څخه پوښتنه کوم همغه زده کوونکي بايد ځواب راکړي نه، بل. محترم ښوونکی بايد هېڅ زده کوونکی په ټولګي کې تهديد نکړي او نه يې په ټنبل معرفي کړي، ځکه کوم زده کوونکي چې په ټنبل معرفي شي، هغه نور هم بې جرأته کېږي او لا ټنبل پاتې کېږي. او نه داسې موقع مساعده کړي چې زده کوونکي پر نورو زده کوونکو وخاندي. ځکه دا هم ناوړه پايلې لري. ان تر دې که کوم زده کوونکی صحيح ځواب ونشي ويلای، هغه ته هم بايد ونه ويل شي چې ستا ځواب غلط دی، ته نه پوهېږې، او داسې نور....

**دویم: لوست**

## سرلیک: زموږ پیغمبرﷺ

**مخ: ۳**

**وخت: ۴۵ دقیقې**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- خپل پیغمبر وپېژني.
- په دې پوه شي چې حضرت محمدﷺ وروستی پیغمبر دی.
- پوه شي چې بل پیغمبر دنیا ته نه راځي.
- پوه شي چې په نړۍ کې باید یوازې د حضرت محمدﷺ لارویتوب وشي.

**اړینه پوهه:**

**د ځینو کلماتو ژباړه:**

حضرت: محترم

پیغمبر: پیغام (خبر) راوړونکی

پیروان: لارویان، تابع

حضرت محمدﷺ د ټولو مسلمانانو پیغمبر دی، حضرت محمدﷺ وروستی پیغمبر دی تردې وروسته تر قیامته پورې بل پیغمبر دنیا ته نه راځي او په نړۍ کې باید یوازې او یوازې د حضرت محمدﷺ پیروي وشي؛ ځکه کوم کتاب چې پر محمدﷺ نازل شوی، په هغه کتاب نور ټول آسماني کتابونه منسوخ شوي او نورو کتابونو او پیغمبرانو ته اړتیا هم نه لیدل کېږي، ځکه په قرآن کریم کې د ټولو اسماني کتابونو خلاصه او لنډیز شته او ډېر جامع الهي کتاب دی.

**مرستندوی توکي:** کتاب، تباشیر، تخته، قلم، کتابچه او د الفباء تورو چارتونه.

**د تدریس طریقه:** تشریحي، سوال او ځواب او ګروپي.

| وخت | د ښوونکي فعالیت | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| مقدمه ۵دقیقې | **مقدمه:**<br>ښاغلی ښوونکی له سلام، حال احوال پوښتنې، حاضرۍ او نظافت کتلو وروسته د ټولګي نظم برابروي او کورنۍ دنده په دقیقه توګه ګوري.<br>وروسته له زده کوونکو څخه د تېر لوست په هکله پوښتنې کوي: | په مقدماتي چارو کې فعاله ونډه اخلي. |
| | • څوک ویلای شي چې موږ او ټول هغه څه چې په ځمکه او اسمانونو کې دي چا پیدا کړي دي؟ | لوست ورسره بدرګه کوي. |
| د لوست بهیر | • څوک ویلای شي چې موږ د چا بندګان یو؟<br>• څوک ویلای شي چې د عبادت وړ څوک دی؟<br>بیا ښوونکی د نوي لوست په هکله پوښتنه کوي چې زموږ پیغمبر څوک دی؟<br>له ځواب اورېدلو وروسته د نوي لوست سرلیک «زموږ پیغمبرﷺ» پر تخته لیکي او د لوست په ویلو پیل کوي، د لوست درې واړې جملې په لوړ غږ سره وايي او زده کوونکو ته هم دنده ورکوي چې په ده پسې یې تکرار کړي. بیا د لوست ستونزمنې کلمې ورته ژباړي او په تخته یې لیکي په څو زده کوونکو لوست | |

| | | |
|---|---|---|
| | تکراروي او د کلماتو د هجاء او معناوو په هکله ورڅخه پوښتنې کوي. وروسته زده کوونکي په څو ډلو ویشي څو د لوست د کلماتو په هجاء کولو کې یو له بل څخه پوښتنې وکړي او په دې هکله یو او بل سره مرسته وکړي. | |
| | **د لوست لنډیز:**<br>زموږ د پیغمبرﷺ مبارک نوم محمدﷺ دی. هغه د الله وروستنی پیغمبر دی ځکه تر هغه وروسته بل پیغمبر دنیا ته نه راځي.<br>موږ او ټوله نړۍ باید د حضرت محمدﷺ پیروي وکړو. | |
| | **ارزونه:**<br>● زموږ د پیغمبرﷺ مبارک نوم څه دی؟<br>● موږ ولې د پیغمبرﷺ لارویتوب کوو؟<br>● حضرت محمدﷺ ولې وروستنی پیغمبر دی؟<br>۱ـــ حضرت ........................................ زموږ پیغمبر دی.<br>۲ـــ موږ د حضرت محمدﷺ ........................................ یو.<br>۳ـــ حضرت محمدﷺ د الله تعالی ............................... پیغمبر دی. | ځوابونه وایي. |
| | **کورنۍ دنده:**<br>محترم ښوونکی، زده کوونکو ته دنده ورکوي چې لوست په خپلو کتابچو کې ولیکي او دا «پیغمبر»کلمه هجاء کړي چې له څو حرفونو څخه جوړه شوې ده. | کورنۍ دنده ترسره کوي. |

درېیم: لوست

## سرلیک: طیبه کلمه

**مخ: ۵**

**وخت: ۴۵ دقیقې**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- طیبه کلمه وویلای شي.
- طیبه کلمه وژباړلی شي.
- وپوهېږي چې د اسلام لومړنی رکن یا بنسټ طیبه کلمه ده.
- په دې پوه شي چې له طیبې کلمې پرته نور عبادتونه د منلو نه دي.
- وپوهېږي چې د اسلام شعار دغه طیبه کلمه ده.

**اړینه پوهه:**

**د ځینو کلماتو معناوې:**

طیبه کلمه: پاکه او سپېڅلې کلمه.

رسول: استازی، نماینده.

طیبه کلمه «لااِلـــهَ اِلااللهُ مـــُحَمّـــَدٌ رَّسُـــولُ اللهِ» د اسلام د پنځو بنسټونو او بناوو څخه لومړنی بنسټ او د اسلام شعار دی، ددې کلمې په ویلو او په زړه سره د هغې په یقین کولو سړی په اسلام کې شاملېږي. دا کلمه له دوو برخو جوړه شوې ده د (لااِلـــهَ اِلااللهُ) په جزء کې ټول الهي احکام او په (مـــُحَمّـــَدٌ رَّسُـــولُ اللهِ) کې د پیغمبرﷺ ټولې نوراني طریقې نغښتي دي. او اسلام هم د الله حکمونه د نبی کریمﷺ په طریقو سره ترسره کولو ته وایي.

**مرستندوی توکي:** کتاب، تباشیر، تخته، د طیبې کلمې چارت او.....

**د تدریس طریقه:** تشریحي، سوال او ځواب او ګروپي.

ښاغلی ښوونکی له مقدماتي موضوع ګانو وروسته د تېر لوست ارزونه کوي:

۱ـــ څوک ویلای شي چې د مسلمانانو د پیغمبرﷺ نوم څه دی؟

۲ـــ څوک ویلای شي د پیغمبر معنا څه ده؟

۳ـــ څوک ویلای شي چې حضرت محمدﷺ ولې وروستنی پیغمبر دی؟

| وخت | د ښوونکي فعالیت | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| مقدمه ۵دقیقې | ښاغلی ښوونکی د نوي لوست د سرلیک ټاکلو لپاره له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي ایا د اسلام تر ټولو لوی بنسټ او د اسلام شعار پېژنئ؟ | په مقدماتي چارو کې فعاله ونډه اخلي. |
| د لوست بهیر | له ځواب اورېدلو وروسته د نوي لوست سرلیک «طیبه کلمه» (لااِلـــهَ اِلااللهُ مـــُحَمّـــَدٌ رَّسُـــولُ اللهِ) پر تخته لیکي. او د لوست په لوستلو پیل کوي. یو ځل طیبه کلمه په لوړ آواز وایي او زده کوونکو ته امر کوي چې دوی یې ورپسې تکرار کړي. بیا طیبه کلمه ورته په دوو برخو ویشي: (لااِلـــهَ اِلااللهُ) (مـــُحَمّـــَدٌ رَّسُـــولُ اللهِ) بیا ورته هره برخه معنا کوي او ورته وایي چې د لومړۍ برخې معنا داده چې له الله تعالی پرته بل برحق معبود نه شته او محمد د الله رسول او استازی دی. | لوست ورسره بدرګه کوي. |

| | | |
|---|---|---|
| | بیا دا کلمه پر ګڼو زده کوونکو تکراروي او د معنا په هکله ورڅخه پوښتنې کوي. بیا زده کوونکي په دوو ډلو وېشي او هره ډله د طیبې کلمې او د هغې د معنا په هکله یو له بل څه پوښتنې کوي، څو د کلمې الفاظ په صحیح توګه تلفظ کړي او په معنا يې وپوهېږي. | |
| | **د لوست لنډیز:**<br>طیبه کلمه د (لاَاِلٰــهَ اِلااللّٰهُ مــُحَمّــَدٌ رَّسُــولُ اللهِ) څخه عبارت ده او په دوو برخو ویشل شوې ده: (لاَاِلٰــهَ اِلااللّٰهُ) (مــُحَمّــَدٌ رَّسُــولُ اللهِ) په لومړۍ برخه کې د الله احکامو ته او په دویمه برخه کې د رسول اللهﷺ نوراني طریقو ته اشاره ده. | لنډیز ته غوږ نیسي. |
| | **ارزونه:**<br>وروسته ښوونکی خپل زده کوونکي ارزوي او ورته وايي:<br>**۱ـــ** د اسلام شعار او لومړنی بنسټ څه شی دی؟<br>**۲ـــ** طیبه کلمه له څو برخو څخه جوړه شوې ده هره برخه يې په څه دلالت کوي؟<br>**۳ـــ** د طیبې کلمې معنا څه ده؟<br>**۴ـــ** که یو کافر د زړه له اخلاصه دغه کلمه ووايي او فوراً مړ شي، آیا جنت ته تللی شي او که نه؟ | ځوابونه وايي. |
| | **کورنۍ دنده:**<br>ښاغلی ښوونکی دې زده کوونکو ته دنده ورکړي چې طیبه کلمه سره له معنا په خپلو کتابچو کې درې درې ځله ولیکي. | کورنۍ دنده ترسره کوي. |

ځلورم: لوست

## سرلیک: د شهادت کلمه

**مخ: ۷**

**وخت: یو درسي ساعت**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- د شهادت کلمه په ښه توګه ولوستلی شي.
- د شهادت کلمه وژباړلی شي.
- د شهادت کلمه په ژبه ووایي او په زړه کې یقین پرې وکړي.
- د شهادت د کلمې ویلو فضلیت وپېژني.

**اړینه پوهه:**

**لاندې کلمات وژباړئ:**

**أَشهــَدُ:** ګواهي ورکوم.

**ان لا اله الا الله:** په دې سره چې له الله تعالی پرته برحق معبود نه شته.

**ان محمدا رسول الله:** په دې سره چې محمد د الله پیغمبر دی.

د شهادت کلمه «اَشهــَدُ اَنَ لا الــَهَ الا اللهُ وَحــدَهُ لاشَــرِيكَ لَــهُ وَاَشهــَدُ اَنَ مُــحَــمَّداًعَــبدُهْ و رَسـُولــهْ» دا هم د اسلام شعار دی او دیته دویمه کلمه یا د شهادت کلمه ویل کېږي. کوم څوک چې دا کلمه په ژبه ووایي او په زړه کې ټینګ یقین او باور پرې وکړي، الله پاک یې ټول پخواني ګناهونه ورته ښښي ولو که یې شرک او کفر هم کړی وي. چا چې دا کلمه وویله، نو هغه د اسلام په پولو کې داخل شو. که ژوندی ؤ، نو ددې کلمې له غوښتنو سره سم به خپل ژوند تېروي او که له دې کلمې وروسته وفات شو، نو هغه ته د اسلام سپیڅلی دین جنتي وایي که څه هم هېڅ نیک عمل ونه کړای شي. ان تردې که چا دا کلمه د زړه له کومې ویلې وي او په ژوندانه کې یې نور نیک اعمال هم نه وي کړي، الله پاک به یې ددې کلمې له برکته له دوزخ څخه را وباسي او جنت ته به یې داخل کړي.

**مرستندوی توکي:** تباشیر، تخته، قلم، کتابچه او داسې نور....

**د تدریس طریقه:** تشریحي، سوال او ځواب.

| وخت | د ښوونکي فعالیت | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| مقدمه ۵دقیقې | **مقدمه:** ښاغلی ښوونکی د سلام او احوال پوښتنې، حاضرۍ کتنې او د ټولګي له نظم برابرولو او کورنۍ دندې له کتلو وروسته د تېر لوست ارزونه کوي او وایي:<br>● څوک کولای شي چې طیبه کلمه په ښه توګه له یاده ووایي؟<br>● څوک کولای شي چې ووایي طیبه کلمه د اسلام څووم بنسټ دی؟<br>● څوک د طیبې کلمې معنا ویلای شي؟<br>● څوک ویلای شي چې طیبه څه معنا لري؟ | په مقدماتي چارو کې فعاله ونډه اخلي.<br><br>لوست ورسره بدرګه کوي. |
| د لوست بهیر | **د لوست بهیر:** ښاغلی ښوونکی د ځوابونو له اورېدلو وروسته له زده کوونکو څخه د نوي لوست د سرلیک معلومولو لپاره پوښتنه کوي. دویمه کلمه (د شهادت کلمه) څوک ویلای شي؟ ددغه ځواب له اورېدلو وروسته د نوي لوست سرلیک «د شهادت کلمه» پر تخته لیکلي او بیا یې په لوړ آواز وایي څو زده | |

| | | |
|---|---|---|
| | کوونکي يې هم ورسره بدرګه کړي، بيا ددې کلمې معنا ورته وايي. او بالآخره ځو زده کوونکي د تختې مخې ته راغواړي او دا کلمه وروباندې وايي او ځينې کلمې يې پرې هجاء کوي. او د ځينو کلمو املا هم پرې کوي او دا ورته وايي چې طيبه کلمه او د شهادت کلمه د حرکاتو له مخې څه فرق لري؟ يعنې په طيبه کلمه کې... مـُحَمَّـدٌ رَّسُــولُ اللهِ ويل کېږي او د شهادت په کلمه کې .... مُــحَــمَّداًعَــبدُهْ و رَسُــولــهْ ويل کېږي، يعنې په طيبه کلمه کې د محمد دال ته پيښ ورکوو.<br>اما په شهادت کلمه کې هر کله چې په دې کلمه (أن) داخل دی نو د محمد دال ته فتحه (زبر) ورکوو نه پيښ. اووايو: وَاَشهــَدُ اَنَ مُــحَــمَّداًعَــبدُه و رَســُولــُه . | |
| | **ارزونه:**<br>**۱ــ څوک د شهادت کلمه په صحيح الفاظو ويلای شي؟**<br>**۲ــ د شهادت په کلمه کې د محمد دال ته کوم حرکت ورکوو؟**<br>**۳ــ په طيبه کلمه کې د محمد دال ته کوم حرکت ورکوو؟**<br>**۴ــ د شهادت کلمه معنا کړئ؟**<br>**۵ــ د شهادت کلمه څو برخې لري هره يوه ووايئ؟** | ځوابونه وايي. |
| | **کورنۍ دنده:**<br>ښاغلی ښوونکی، زده کوونکو ته دنده ورکوي چې په خپلو کتابچو کې طيبه کلمه او د شهادت کلمه وليکي او بيا حرکتونه (زبر، زير او پيښ) هم ورکړي. | کورنۍ دنده ترسره کوي. |

**پنځم: لوست**

## سرلیک: قرآن کریم

**مخ: ۹**

**وخت: یو درسي ساعت**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- لوست د کتاب له مخې وویلای شي.
- د لوست د کلماتو حرفونه وپېژني.
- په دې وپوهېږي چې قرآن کریم د الله تعالی خبرې دي.
- پوه شي چې قرآنکریم آسماني کتاب او له برکتونو څخه ډک دی.
- وپوهېږي چې قرآن کریم د جبرائیلؑ په واسطه پر حضرت محمدﷺ باندې د الله له خوا نازل شوی دی.

**اړینه پوهه:**

**د ځینو کلماتو معنا:**

ایمان: په لغت کې تصدیق او باور ته ویل کېږي او په اصطلاح کې په مؤمن به شیانو باندې اقرار او تصدیق کولو ته وایي.

کلام: خبرې

نازل: رالېږلی

قرآن: له قرأ څخه اخستل شوی، د لوستلو په معنا دی او که له قرن څخه شي، بیا د یو ځای کولو او جمع کولو په معنا دی.
قرآن کریم د آسماني کتابونو له ډلې څخه څلورم وروستنی کتاب دی. قرآن کریم د الله تعالی خبرې دي، د مقربې پرښتې جبرائیلؑ په واسطه پر حضرت محمدﷺ باندې نازل شوی دی. قرآن کریم د لوح محفوظ څخه د دنیا آسمان ته په یو ځل د قدر په شپه راغلی او بیا پر حضرت محمدﷺ له ضرورت سره سم په ۲۳ کلونو کې ټوټه، ټوټه نازل شوی دی، په دغه آسماني کتاب کې د ټولو آسماني کتابونو (تورات، انجیل، زبور او نور سلو صحیفو کلیات ځای په ځای شوي دي، نو ځکه دغه کتاب د ټولو آسماني کتابونو ناسخ ګڼل کېږي، د قرآنکریم په موجودیت کې پر بل هېڅ کتاب عمل نه کېږي.
په نورو آسماني کتابونو کې تحریف شوی او په خپل اصل نه دي پاتې، یوازنی کتاب چې له تحریف څخه ژغورل شوی دی، همدا قرآن کریم دی، ځکه یو یې الله جَلَّ جَلالُهُ د ساتنې ذمه وهلې او بل په نړۍ کې په ملیونونو حافظان لري ځوک یې یو حرکت هم نشي بدلولی.

**د لوست مرستندوی توکي:** کتاب، تباشیر، تخته، قلم، کتابچه، پنسل، پنسل پاک، پنسل تراش او داسې نور.

**د تدریس طریقه:** تشریحي، سوال او ځواب او داسې نور.

| وخت | د ښوونکي فعالیت | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| مقدمه ۵دقیقې | ښاغلی ښوونکی له سلام اچولو، روغبړ، حاضرۍ او نظافت کتلو وروسته د ټولګي نظم برابروي او کورنۍ دنده په دقیقه توګه ګوري او غلطۍ یې ورته په ګوته کوي. وروسته د تېر لوست ارزونه کوي اووایي:<br>● د شهادت کلمه څوک ویلای شي؟<br>● څوک ویلای شي چې د شهادت کلمه څو برخې ده؟<br>● د شهادت د کلمې معنا څوک کولای شي؟ | د سلام ځواب وایي «وعلیکم والسلام ورحمة الله وبرکاته».<br><br><br><br>کورنۍ دنده ورښیي. |
| د لوست | ● د «شهادت» کلمه څوک هجا کولای شي؟ | |

| | | |
|---|---|---|
| بهیر | بیا ښاغلی ښوونکی د نوي لوست د سرلیک معلومولو په هکله پوښتنه کوي، **قرآن کریم د چا کلام دی؟**<br>له ځواب اورېدلو وروسته ښوونکی د نوي لوست سرلیک «قرآن کریم» پر تخته لیکي او د لوست په ویلو پیل کوي، د لوست دری واره جملې په لوړ آواز وایي او زده کوونکي یې ورپسې بدرګه کوي، د لوست ستونزمنې کلمې هم پر تخته لیکي او بیا له یو یو زده کوونکي څخه غواړي چې دا کلمې د تختې له مخې ووایي او حرفونه یې هجا او معنا یې هم څرګنده کړي او که دوی ونه توانېږي نو بیا یې ښوونکی ورته معنا کوي، بیا ښوونکی له ځو زده کوونکو څخه غواړي چې د تختې مخې ته راشي او د لوست څه کلمات چې ښوونکی یې ورته وایي، هغه پر تخته ولیکي مثلاً قرآن کریم، کلام، نازل، ایمان. | پوښتنو ته ځوابونه ورکوي.<br><br>لوست ورسره بدرګه کوي.<br><br>د کلماتو حرفونه پیژني. |
| | **د لوست لنډیز:**<br>قرآنکریم د الله تعالی خبرې دي، پر حضرت محمدﷺ نازل شوی او موږ ټول په قرآنکریم ایمان لرو. | |
| | **ارزونه:**<br>ورپسې ښوونکی خپل زده کوونکي ارزوي او ورته وایي:<br>۱ــ قرآن کریم د چا کلام دی؟<br>۲ــ قرآن کریم پر چا باندې نازل شوی دی؟<br>۳ــ قرآن کریم د چا په واسطه د الله له لوري راغلی دی؟<br>۴ــ په قرآن کریم د ایمان حکم څه دی؟ | ځوابونه وایي. |
| | **کورنۍ دنده:**<br>ورپسې ښاغلی ښوونکی، زده کوونکو ته کورنۍ دنده ورکوي او ورته وایي چې نوی لوست په خپلو کتابچو کې ولیکي او لاندې کلمات هجا کړي: محمد، ایمان، قرآنکریم، کلام، باندې، نازل شوی. | کورنۍ دنده ترسره کوي. |

شپږم: لوست

## سرلیک: اسلام

**مخ: ۱۱**

**وخت: یو درسي ساعت**

**موخې (هدفونه): زده کوونکي باید:**

- لوست په ښه توګه ولوستلی شي.
- په لوست کې نوې کلمې هجا کړی شي.
- د لوست د ستونزمنو کلمو په معنا وپوهېږي.
- د اسلام په ارزښت پوه شي.

**اړینه پوهه:**

**د ځینو کلماتو معنا:**

دین: دین په لغت کې جزا او عوض او کړنلارې ته ویل کېږي او په اصطلاح کې هر هغه شی دی چې په هغې عبادت کېږي او مسلمان الله تعالی ته ځان ورباندې نږدې کوي.

اسلام: د الله تعالی اوامرو ته غاړه ایښودلو او له منع کړی شوو شیانو څخه ځان ژغورلو ته وایي.

بناوې: بنسټونه، تهدابونه، ارکان.

اسلام د الله تعالی اوامرو ته غاړه ایښودل او له منع شویو څېزونو څخه یې ځان ژغورل دي او پنځه بناوې لري لکه طیبه کلمه، لمونځ، روژه، زکوة او حج. اسلام اعتقادي او عملي اړخونه لري سربېره په عمل کولو د لمانځه، روژې، زکوة او حج په فرضیت یقین درلودل هم حتمي دي. الله جل جلاله په قرآن کریم کې فرمایي: (وَرَضِيتُ لَكُمُ الإِسْلاَمَ دِينًا) یعنې اسلام مې تاسو ته د دین او کړنلارې په توګه غوره کړ. نو کله چې الله جل جلاله د اسلام دین مونږ ته غوره کړی، معلومېږي چې په ټولو ادیانو کې دا غوره او افضل دین دی. او همدارنګه الله جل جلاله فرمایي: (هُوَ سَمَّاكُمُ الْمُسْلِمِينَ) سورة الحج یعنې الله جل جلاله په مسلمانانو باندې د مسلمینو نوم ایښودلی دی. او همدارنګه الله جل جلاله فرمایي: (وَمَن يَبْتَغِ غَيْرَ الإِسْلاَمِ دِينًا فَلَن يُقْبَلَ مِنْهُ وَهُوَ فِي الآخِرَةِ مِنَ الْخَاسِرِينَ) د آل عمران سورت ۸۵.

یعنې څوک چې د اسلام له دینه پرته بل دین د ځان لپاره غواړي، هېڅکله به ورځنې قبول نشي او په آخرت کې به له تاوانیانو څخه وي.

لنده داچې د اسلام لپاره همدا فضیلت او غوره والی بس دی چې الله د خپلو بندګانو لپاره خوښ کړی دی او داچې الله ټول کاینات انسان ته تابع کړي او د دوی په خدمت کې یې لګولي دي. دا کار یې هم ددې په خاطر کړی دی چې انسان د «الست بربکم» په ورځ د دین ذمه واري منلې او څوک چې د دین ذمه واري نه مني، هغه خو الله تعالی تر حیواناتو هم ټیټ راپیژندلي دي (أُوْلَـئِكَ كَالأَنْعَامِ بَلْ هُمْ أَضَلُّ).

**د لوست مرستندوی توکي:** کتاب، تباشیر، تخته، قلم، کتابچه او داسې نور.

**د تدریس طریقه:** تشریحي، سوال او ځواب او داسې نور.

| وخت | د ښوونکي فعالیت | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| مقدمه ۵دقیقې | ښاغلی ښوونکی له مقدماتي موضوعګانو څخه وروسته د تېر لوست ارزونه کوي مثلاً:<br>● څوک ویلای شي چې قرآنکریم د چا خبرې دي؟ | مقدماتي چارې ترسره کوي. |

| | | |
|---|---|---|
| د لوست بهير | • څوک ویلای شي چې قرآن کریم په چا نازل شوی دی؟<br>• څوک ویلای شي چې په قرآن کریم د ایمان حکم څه دی؟<br>بیا ښاغلی ښوونکی د نوي لوست د سرلیک معلومولو په هکله پوښتنه کوي:<br>زموږ د دین نوم څه دی؟<br>د ځواب له اورېدلو وروسته ښوونکی د نوي لوست سرلیک «اسلام» په تخته لیکي او د لوست په ویلو پیل کوي، لوست په لوړ آواز لولي او زده کوونکي یې ورپسې تکراروي، وروسته لوست په څو زده کوونکو وایي بیا ښوونکی هره کلمه ورته هجا کوي او د زده کوونکو څخه هم په دې هکله پوښتنې کوي څو زده کوونکي د هرې کلمې توري وپېژني او ویې لیکلی شي. وروسته ستونزمنې کلمې ورته په ډیره ساده ژبه معنا کوي او زیار باسي چې د اسلام پنځه بنسټونه هر زده کوونکی په یاد ولري. وروسته زده کوونکي په څو ډلو ویشي څو یو د بل څخه د اسلام د بنسټونو په هکله پوښتنې وکړي. | پوښتنو ته ځوابونه ورکوي.<br><br>باید هر زده کوونکي د لوست د هرې کلمې توري وپیژني او ویې لیکلي شي. |
| | **د لوست لنډیز:**<br>اسلام د مسلمانانو دین دی او پنځه ارکان یا بنسټونه لري لکه طیبه کلمه: لااِلـــهَ اِلاالله مـــُحَمّـــَدٌ رَّسُـــولُ اللهِ ، لمونځ، روژه، زکوة او حج. موږ مسلمانان له خپل دین سره مینه لرو، او د اسلام له یوې بنا څخه هم انکار نه کوو. څوک منکر یې کافر دی. | زده کوونکي د لوست لنډیز ته غوږ نیسي. |
| | **ارزونه:**<br>۱ــ زموږ د دین نوم څه دی؟<br>۲ــ د اسلام دین څو بنسټونه لري؟<br>۳ــ د اسلام د بنسټونو نومونه واخلئ؟<br>۴ــ موږ ولې له خپل دین سره مینه لرو؟ | زده کوونکي پوښتنو ته ځوابونه وایي. |
| | **کورنۍ دنده:**<br>ښوونکی صاحب زده کوونکو ته وظیفه یا دنده ورکوي چې دغه لوست په خپلو کتابچو کې ولیکي او د اسلام پنځه بنسټونه یاد کړي. | کورنۍ دنده ترسره کوي. |

**اووم: لوست**

## سرلیک: کعبه شریفه

**مخ: ۱۳**

**وخت: یو درسي ساعت**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- لوست په ښه توګه ولوستلی شي.
- د لوست کلمې هجا کړی شي.
- وپوهېږي چې کعبه شریفه زموږ قبله ده.
- پوه شي چې موږ د کعبې شریفې په لوري لمونځ کوو.
- دا هم زده کړي چې کعبه شریفه د الله کور دی.
- وپوهېږي چې کعبه شریفه په عربستان کې ده.
- وپوهېږي چې کعبه شریفه د حج اداء کولو ځای دی.

**اړینه پوهه:**

**د ځینو کلمو معناوې:**

قبله: مخامخ لوری

کعبه: د الله کور

شریفه: عزتمنه

کعبه شریفه د ټولو مسلمانانو قبله ده او کعبې شریفې ته د الله ﷻ کور هم ویل کېږي «بیت الله» خو الله ته ددې کوټې نسبت د فضیلت او غوره والي له امله شوی او که نه الله ﷻ نه کور لري او نه کور ته ضرورت، الله مکان او ځای نه لري، یوازې دومره عقیده لرو چې الله په عرش تکیه کړیده، خو د هغو په کیفیت موږ نه پوهېږو. کعبه شریفه په حقیقت کې د ټولو مسلمانانو د وحدت او یووالي سمبول دی، چې په کال کې د ټولې نړۍ مسلمانان هلته راټولېږي او یو د بل له حال، احوال، ستونزو او مشکلاتو څخه ځانونه خبروي. کعبه شریفه د عربستان د مکې مکرمې په ښار کې د مسجد الحرام په منځ کې موقعیت لري او دلته یو لمونځ نه بلکې هر بدني عبادت د نورو جوماتونو په پرتله سل زره ځله زیات ثواب لري او دا خبره په حدیث شریف ثابته ده، نبی کریم ﷺ فرمایلي دي: (فضل الصلوة فی المسجد الحرام علی غیره مائة الف صلوة).

**د لوست میتود:** تشریحي، ګروپي، سوال او ځواب.

| وخت | د ښوونکي فعالیت | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| مقدمه ۵دقیقې | ښاغلی ښوونکی له مقدماتي موضوعګانو وروسته د تېر لوست ارزونه کوي د بېلګې په توګه:<br>• څوک ویلای شي چې زموږ د دین نوم څه دی؟<br>• څوک ویلای شي چې د اسلام بنسټونه څو دي؟<br>• طیبه کلمه څوک ویلای شي؟ | مقدماتي چارې په ښه توګه ترسره کوي.<br>پوښتنو ته ځوابونه ورکوي. |
| د لوست بهیر | له ځوابونو اورېدلو وروسته د نوي لوست سرلیک معلوموي او وايي: د مسلمانانو قبله کومه ده؟ له ځواب اورېدلو وروسته د تختې پر مخ د نوي لوست سرلیک «کعبه شریفه» لیکي او د لوست په ویلو پیل کوي، زده کوونکي لوست | په لوست کې په مینه |

| | | |
|---|---|---|
| | ورسره په لوړ غږ تکراروي او ښوونکی صاحب د لوست هره کلمه ورته هجاء کوي او یو حرف له بل حرف سره نښلوي، څو دوی هم د حرفونو په نښلولو سره کلمه جوړه کړی شي. بیا څو زده کوونکي د تختې مخې ته راغواړي او یوه یوه کلمه ورباندې لیکي، څو له لومړي ټولګي څخه دوی له املا سره روږدي شي او په عین حال کې ستونزمنې کلمې ورته معنا کوي او یوه یوه کلمه ورته په جمله کې استعمالوي، څو دوی هم وکولای شي چې جملې جوړې کړي، یعنې لغت په جمله کې استعمال کړای شي. | ونډه اخلي. |
| | **د لوست لنډیز:**<br>کعبه شریفه زموږ قبله ده چې د هغې په لوري لمونځ کوو او دا د الله په کور هم مشهوره ده. | لنډیز ته پاملرنه کوي. |
| | **ارزونه:**<br>۱ـــ زموږ د قبلې نوم څه دی؟<br>۲ـــ کعبه شریفه د چا کور دی؟<br>۳ـــ مسلمانان کوم لوري ته لمونځ کوي؟<br>۴ـــ کعبه شریفه چیرته موقعیت لري؟<br>۵ـــ ولې مسلمانان ټول یوې قبلې ته لمونځ کوي؟ | زده کوونکي پوښتنو ته ځوابونه وايي. |
| | **کورنۍ دنده:**<br>ښوونکی زده کوونکو ته دنده ورکوي چې لوست په خپلو کتابچو کې ولیکیاو کومې خالیګاوې چې پکې دي هغه ډکې کړي. | کورنۍ دنده ترسره کوي. |

**اتم: لوست**

## سرلیک: د لمانځه لپاره پاکوالی

**مخ: ۱۷**

**وخت: یو درسي ساعت**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- د لمانځه د اداء لپاره ځان، جامې او ځای پاک وساتي.
- د پاکوالي په ګټو وپوهېږي.
- د پاکوالي ګټې نورو ته بیان کړای شي.
- پوه شی چې پاکوالی روغتیا ته ډېره ګټه رسوي.
- وپوهېږي چې الله پاکان خوښوي.

**اړینه پوهه:**

**د ځینو کلمو معناوې:**

اداء: ترسره کول

پاک: سپېڅلی

پاکوالی د ایمان یوه برخه ده. نبي کریمﷺ فرمایي: (الطهور شطر الایمان). الله پاک هم پاکان خوښوي لکه چې فرمایي: (إِنَّ اللّٰهَ يُحِبُّ التَّوَّابِينَ وَيُحِبُّ الْمُتَطَهِّرِينَ) البقرة آیت ۲۲۲.

یعنې الله تعالی توبه کوونکي او پاکان خوښوي. څوک چې نظافت ته پاملرنه کوي، هغه هېڅکله نه ناروغه کېږي، نو باید د خپل ځان، جامو، کور، ټولګي او خپل چاپېریال په پاک ساتلو کې فعاله ونډه واخلو او د نظافت ارزښت په خپل ژوند کې تلپاتې عادت وګرځوو او هېڅکله ناپاک خواړه او نا پاکې اوبه ونه چښو. ځکه ناپاک خوراک او څښاک په روغتیا ډېر ژر اغیز کوي او د روغتیا له خواړه نعمت څخه مو محروموي.

**د لوست مرستندوی توکي:** درسي کتاب، قلم، کتابچه، تباشیر، تخته، چارتونه او داسې نور.

**د تدریس طریقه:** تشریحي، سوال او ځواب ګروپي، انفرادي.

| وخت | د ښوونکي فعالیت | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| مقدمه ۵دقیقې | ښاغلی ښوونکی له مقدماتي موضوعګانو څخه وروسته د تېر لوست ارزونه کوي.<br>د بېلګې په توګه:<br>• څوک ویلای شي چې زموږ قبله کوم لوري ته ده؟<br>• څوک ویلای شي چې کعبه شریفه د چا کور دی؟<br>• څوک ویلای شي چې کعبه شریفه د عربستان په کوم ښار کې ده؟ | مقدماتي چارې په ښه توګه ترسره کوي.<br>پوښتنو ته ځوابونه ورکوي. |
| د لوست بهیر | له ځوابونو اورېدلو وروسته د نوي لوست د سرلیک معلومولو لپاره پوښتنه کوي په لمانځه کې د کومو شیانو پاکوالی شرط دی؟<br>له ځواب اورېدلو وروسته د نوي لوست سرلیک «د لمانځه لپاره پاکوالی» پر تخته لیکي او په لوست پیل کوي، لوست په لوړ آواز وایي او زده کوونکي یې ورپسې تکراروي. بیا یې پر څو زده کوونکو لولي. وروسته د لوست ستونزمنې کلمې پر تخته لیکي او له زده کوونکو غواړي چې هغه په جلا جلا توګه، توري، | په لوست کې فعاله ونډه اخلي. |

| | | |
|---|---|---|
| | توري او کلمه په کلمه سره بېلې کړي او که په معنا يې نه پوهېږي، د هغو په هکله له ښوونکي وپوښتي بيا ښاغلی ښوونکی زده کوونکي په څو ډلو وېشي څو د لوست په هکله له يو او بل څخه پوښتنې وکړي او په ځينو کلماتو وغږېږي بالآخره ښوونکی د لوست لنډيز ورته وړاندې کوي او وايي: د لمانځه د اداء لپاره د دريو څېزونو پاکوالی شرط دی: د بدن، د کاليو او د لمانځه د ځای. هدف داچې ددغو دريو واړو شيانو پر پاکوالي سربېره اودس کول هم ضروري دي. | |
| | **ارزونه:**<br>بيا ښوونکی زده کوونکي د نوي لوست په اړه ارزوي:<br>**۱ـــ** د لمانځه د اداء کولو لپاره د څو شيانو پاکوالی ضروري دی؟<br>**۲ـــ** ايا د لمانځه اداء کولو لپاره د اوداسه لرل ضروري دي که نه؟ | زده کوونکي پوښتنو ته ځوابونه وايي. |
| | **کورنۍ دنده:**<br>ښاغلی ښوونکی زده کوونکو ته دنده ورکوي چې همدا لوست په خپلو کتابچو کې وليکي او لاندې کلمې «لمونځ، اداء، ځان، کالی، پاک او زموږ» هجا کړي. | کورنۍ دنده ترسره کوي. |

**نهم: لوست**

## سرلیک: اودس

**مخ: ۱۹**

**وخت: یو درسي ساعت**

**موخې زده کوونکي باید:**

- د اوداسه فرضونه وپېژني.
- په اوداسه کې فرض غړي عملاً ووينځلی شي.
- لوست په ښه توګه ووېلای شي.
- وپوهېږي چې بې اودسه لمونځ نه کېږي.
- د لوست کلمې هجا کړای شي.

**اړينه پوهه:**

اودس: د لمانځه اداء کولو لپاره شرط او ضروري دی، الله ﷻ په قرآن کريم کې د اوداسه په هکله فرمايي: (يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُواْ إِذَا قُمْتُمْ إِلَى الصَّلاةِ فاغْسِلُواْ وُجُوهَكُمْ وَأَيْدِيَكُمْ إِلَى الْمَرَافِقِ وَامْسَحُواْ بِرُؤُوسِكُمْ وَأَرْجُلَكُمْ إِلَى الْكَعْبَينِ) المائده آيت ٦.

يعنې ای مؤمنانو کله چې تاسې د لمانځه اداء کولو لپاره پاڅېدئ (او بې اودسه يئ)، نو بايد خپل مخونه او لاسونه سره له څنګلو ووينځئ، پر سرونو لاسونه راکاږئ او پښې سره له ښنګرو پرې مينځئ.

هر کله چې په آيت کې الله ددغو غړو د وينځلو امر کړی، نو د امر غوښتنه داده چې دا فرض دي. نبي کريم ﷺ هم فرمايي: «لاصلوة لمن لا وضوء له» يعنې له اوداسه پرته لمونځ نشته (نه اداء کېږي).

او په پورتني آيت پسې راځي: (وَإِن كُنتُمْ جُنُبًا فَاطَّهَّرُواْ) يعنې که تاسې جنب ياست نو په غسل ځانونه پاک کړئ.

له ښاغلی ښوونکي څخه هيله کېږي چې خپلو زده کوونکو ته د اوداسه سنتونه او مستحبات هم په ډېره ساده او آسانه توګه شرحه کېږي. او د سر د مسحې په هکله هم بايد زده کوونکو ته معلومات ورکړي چې په اوداسه کې د سر څلورمه برخه فرض او د نور سر مسحه سنت ده.

**د لوست مرستندوی توکي:** درسي کتاب، قلم، کتابچه، تباشير، تخته، چارتونه او داسې نور.

**د تدريس طريقه:** تشريحي، سوال او ځواب ګروپي، انفرادي.

| وخت | د ښوونکي فعاليت | د زده کوونکو فعاليتونه |
|---|---|---|
| مقدمه ۵دقيقې | ښاغلی ښوونکی له مقدماتي موضوعګانو څخه وروسته د تېر لوست ارزونه کوي. مثلاً:<br>• څوک ويلای شي چې د لمانځه اداء کولو لپاره د کومو شيانو پاکوالی ضروري دی؟<br>• څوک دا کلمې: «لمونځ، پاکوالی، اداء، کالي» هجا کولای شي؟ | مقدماتي چارې په ښه توګه ترسره کوي.<br>پوښتنو ته ځوابونه ورکوي. |
| د لوست بهير | وروسته د نوي لوست د سرليک معلومولو لپاره پوښتنه کوي، ايا بې اودسه لمونځ کېږي؟ له ځواب اورېدلو وروسته د نوي لوست سرليک «اودس» پر تخته ليکي او لوست پيل کوي، لوست په لوړ آواز وايي او زده کوونکي يې هم په لوړ آواز ورپسې وايي. بيا لوست پر څو زده کوونکو تکراروي. وروسته د زده کوونکو څخه د کلمو د هجاء په هکله پوښتنې کوي او ځينې زده کوونکي د | په لوست کې فعاله ونډه اخلي. |

| | | |
|---|---|---|
| | تختې مخې ته راغواړي او ځينې کلمې پرې ليکي، او بيا يې پرې په جلا جلا توګه، حرف په حرف او کلمه په کلمه سره ښيلوي. بيا زده کوونکي په څو ډلو وېشي او هرې ډلې ته دنده ورکوي چې د نوي لوست په هکله له يو او بل څخه پوښتنې وکړي څو د اوداسه فرضونه وپيژني او ياد يې شي. او د کتاب خاليګاوې هم په زده کوونکو ډکوي. او په يوه تن عملي اودس کوي. | |
| | **د لوست لنډيز:**<br>ورپسې د لوست لنډيز ورته وايي:<br>په اوداسه کې څلور شيان فرض دي: ۱ــ د مخ وينځل. ۲ــ د لاسونو وينځل سره له څنګلو. ۳ــ د سر د څلورمې برخې مسحه. ۴ــ د دواړو پښو وينځل سره له ښنګرو. | |
| | **ارزونه:**<br>ورپسې ښوونکی د خپل ډاډ په خاطر زده کوونکي ارزوي:<br>۱ــ د اوداسه فرضونه څو دي؟<br>۲ــ آيا د مخ وينځل فرض دي، اندازه يې ووايئ؟<br>۳ــ ايا په لاسونو کې څنګلې او په پښو کې ښنګري شامل دي او که نه؟<br>۴ــ ايا د سر د مسحې څلورمه برخه فرض پيژنئ؟ | زده کوونکي پوښتنو ته ځوابونه وايي. |
| | **کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکي دې دغه لوست په خپلو کتابچو کې وليکي. | کورنۍ دنده ترسره کوي. |

لسم: لوست

## سرلیک: د لمانځه وختونه

**مخ: ۲۱**

**وخت: یو درسي ساعت**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- لوست د کتاب له مخې په ښه توګه وویلای شي.
- وپوهېږي چې لمونځ د اسلام دویمه بنا (بنسټ) دی.
- د لمانځه وختونه وپیژني.
- پوه شي چې په شپه او ورځ کې پنځه وخته لمونځ کېږي.
- وپوهېږي چې لمونځ ډېر ستر عبادت دی.

**اړینه پوهه:**

د لمانځه وختونه: د وخت پیژندل هم د لمانځه له فرضیاتو څخه دی یعنې د لمانځه لپاره وخت فرض دی.

۱ــ د سهار د لمانځه وخت: د رڼښتیني سبا له راختلو څخه پیل د لمر تر راختلو پورې اداء کېدای شي.

۲ــ د ماسپښین د لمانځه وخت: د لمر له زواله پیل ترڅو د هر شي سیوره له اصلي سیوري پرته دوه چنده شي.

۳ــ د مازدیګر د لمانځه وخت: له همدغه وخته یعنې د سیوري له دوه چندۍ څخه پیل د لمر تر ډوبېدلو پورې دی.

۴ــ د ماښام د لمانځه وخت: د لمر له ډوبیدو څخه پیل تر ورکېدو د شفق (سوروالي) پورې دی.

۵ــ د ماخستن د لمانځه وخت: د شفق له ډوبېدو پیل تر سپیدو چاودو (رڼښتیني سبا راختلو پورې) دی.

**د لوست مرستندوی توکي:** درسي کتاب، قلم، کتابچه، تباشیر، تخته، د لمانځه د وختونو چارت او داسې نور.

**د تدریس طریقه:** تشریحي، سوال او ځواب ګروپي او داسې نور.

| وخت | د ښوونکي فعالیت | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| مقدمه ۵دقیقې | ښاغلی ښوونکی له مقدماتي موضوعګانو څخه وروسته د تېر لوست ارزونه کوي.<br>د بېلګې په توګه:<br>• څوک ویلای شي چې په اوداسه کې د کومو غړیو وینځل فرض دي؟<br>• څوک ویلای شي چې د سر په مسحه کې څومره برخه فرض ده؟<br>• څوک ویلای شي چې د څنګلو او ښنګرو وینځل په فرضو کې داخل دي او که نه؟ | مقدماتي چارې په ښه توګه ترسره کوي.<br>پوښتنو ته ځوابونه ورکوي. |
| د لوست بهیر | • څوک دا کلمات: «اودس، مخ، لاسونه، څنګلې او ښنګري» هجا کولی شي؟<br>وروسته د نوي لوست د سرلیک په هکله پوښتنه کوي: په یوه ورځ او شپه کې څو لمونځونه کېږي؟<br>بیا د لوست سرلیک «د لمانځه وختونه» پر تخته لیکي او په لوست پیل کوي، لوست په لوړ آواز سره وایي او زده کوونکي یې ورپسې تکراروي، وروسته ستونزمنې کلمې پر تخته لیکي او یو یو زده کوونکی د تختې مخې ته راغواړي او دا کلمې ورباندې هجاء کوي او بیا د امکان په صورت کې یوه یوه کلمه پر دوی لیکي او یوه یوه کلمه په جمله کې هم پرې استعمالوي څو وکولای شي | په لوست کې فعاله ونډه اخلي. |

| | | |
|---|---|---|
| | چې لغت په جمله کې استعمال کړی شي.<br>وروسته پر څو زده کوونکو لوست وایي څو لوست په ښه توګه ولوستلی شي بیا د کتاب ارزونه ورباندې حلوي او خالیګاوې ورباندې ډکوي. | |
| | **د لوست لنډیز:**<br>ورپسې د لوست لنډیز ورته وایي:<br>لمونځ د اسلام دویمه بناء (بنسټ) دی، په یوه ورځ او شپه کې پنځه وخته لمونځ فرض دی. سهار، ماسپښین، مازدیګر، ماښام، ماخستن، وروسته خپل زده کوونکي ارزوي چې څومره په لوست پوه شوي دي. | |
| | **ارزونه:**<br>**۱ــ لمونځ د اسلام څومه بناء ده؟**<br>**۲ــ په یوه ورځ او شپه کې څو ځله لمونځ کېږي، د وختونو نومونه یې واخلئ؟** | زده کوونکي پوښتنو ته ځوابونه وایي. |
| | **کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکي دې دغه لوست په خپلو کتابچو کې ولیکي او سهار، ماسپښین، ماخستن کلمې دې هجا کړي. | کورنۍ دنده ترسره کوي. |

**یوولسم: لوست**

## سرلیک: لمونځ (۱)

**مخ: ۲۳**

**وخت: یو درسي ساعت**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- لوست د کتاب له مخې په ښه توګه ولوستلی شي.
- د لوست کلمې هجاء کړای شي.
- لوست په یادو زده کړای شي.
- وپوهېږي چې په لوست کې څه ذکر شوي، دیته ثناء ویل کېږي.
- له ثنا سره مینه او علاقه څرګنده کړي ځکه دا د الله ډېر لوړ صفتونه دي.

**اړینه پوهه:**

**د لمانځه تعریف:**

لمونځ چې د عربي ژبې د الصلوة کلمې ژباړه ده. په لغت کې دعا ته وایي او په اصطلاح کې هغه ځانګړې ویناوې او کړه وړه دي چې د «الله اکبر» په ویلو پیلېږي او د «السلام علیکم ورحمة الله » په ویلو سره پای ته رسېږي.

لمونځ د خپل اهمیت له مخې د اسلام دویمه بناء یا رکن دی. په لمانځه سره د مسلمان او کافر ترمنځ توپیر کېږي. لمونځ هغه یوازنی عبادت دی چې په هغه کې د الله تعالی سره په مستقیمه توګه خبرې کېږي. د قیامت په ورځ به هم لومړی د لمانځه پوښتنه کېږي.

په قصد سره د لمانځه پرېښودونکي ته ځینو دیني امامانو او مذاهبو کافر ویلای دی، خو زموږ په مذهب کې تر هغه نه کافرېږي څو یې قصدي پرېښول حلال ونه بولي او یا یې توهین ونکړي.

د لمانځه قصدي پرېښودونکي ته که توبه ونه باسي، شریعت د مرګ سزا ټاکلې ده.

داچې لمونځ په یوه ورځ او شپه کې پنځه ځله تکرارېږي، حکمت یکې دادی چې همیشه موږ د الله تعالی سره اړیکې ټینګې او د تل لپاره ورسره ژمن واوسېږو.

**د لوست مرستندوی توکي:** درسي کتاب، قلم، کتابچه، تباشیر، تخته او داسې نور.

**د تدریس طریقه:** تشریحي، سوال او ځواب ګروپي او داسې نور.

| وخت | د ښوونکي فعالیت | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| مقدمه ۵دقیقې | ښاغلی ښوونکی له مقدماتي موضوعګانو وروسته د تېر لوست ارزونه کوي.<br>د بېلګې په توګه:<br>• څوک ویلای شي چې لمونځ د اسلام څووم رکن دی؟<br>• څوک ویلای شي چې په یوه ورځ او شپه کې څو ځله لمونځ کېږي؟<br>• د لمانځه وختونه څوک ویلای شي؟<br>له ځوابونو اورېدلو وروسته ښوونکی د نوي لوست د سرلیک معلومولو لپاره پوښتنه کوي چې لمونځ په څه شي پیل کېږي؟ | مقدماتي چارې په ښه توګه ترسره کوي.<br>پوښتنو ته ځوابونه ورکوي. |
| د لوست بهیر | د همدې پوښتنې په اړه د نوي لوست سرلیک لمونځ (۱) پر تخته لیکي او لوست پیلوي، لوست په لوړ غږ وایي او زده کوونکي یې هم په لوړ غږ ورپسې | په لوست کې فعاله ونډه اخلي. |

| | | |
|---|---|---|
| | تکراروي. وروسته د لوست ځينې کلمې ورته هجاء کوي او له زده کوونکو څخه هم غواړي چې ځينې کلمې په جلا جلا توګه، توری، توری او کلمه کلمه سره بیلې کړي.<br>بيا له څو زده کوونکو څخه په نوبت غواړي چې لوست د کتاب له مخې ولولي او دی ورسره مرسته کوي او زده کوونکي ديته هڅوي چې نوی لوست چې د ثناء په نامه يادېږي حفظ کړي.<br>بيا زده کوونکو ته وخت ورکوي چې له خپل ښوونکي وپوښتي، ښوونکی ورته په ډېره مينه او خواخوږۍ ځوابونه وايي. | |
| | **د لوست لنډيز:**<br>بالآخره ښوونکی ورته د لوست لنډيز بيانوي او وايي:<br>مورږ په دغه نني لوست کې د لمانځه تکبير او ثناء ولوستله.<br>تحريمه تکبير: الله اکبر ته ويل کېږي.<br>ثناء: سبحانک اللهم........ تر «غيرک» پورې ده. | لنډيز اوري. |
| | **ارزونه:**<br>وروسته ښوونکی دوی ارزوي چې په لوست پوه شوي او که نه؟<br>۱ـــ په درسي کتاب کې چې کومې خاليګاوې دي، هغه څوک ډکولای شي؟<br>۲ـــ ثناء څه ته ويل کېږي؟<br>۳ـــ تکبير څه ته وايي؟<br>۴ـــ څوک ثنا له ياده ويلای شي؟ | زده کوونکي پوښتنو ته ځوابونه وايي. |
| | **کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکي دې دغه لوست په خپلو کتابچو کې وليکي. | کورنۍ دنده ترسره کوي. |

**دوولسم: لوست**

## سرلیک: لمونځ (۲)

**مخ: ۲۵**

**وخت: یو درسي ساعت**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- تعوذ یعنې «اعوذ بالله من الشیطان الرجیم» د کتاب له مخې په ښه توګه وویلای شي.
- «بسم الله الرحمن الرحیم» په ښه توګه تلفظ کړای شي.
- ددې دواړو حرفونه هجاء کاندي.
- پوه شي چې په «تعوذ» سره شیطان تیښتې ته مجبورېږي.
- وپوهېږي چې کله د هر کار په پیل کې «بسم الله الرحمن الرحیم» وویل شي، په هغه کې برکت راځي.
- پوه شي چې د قرآن کریم د تلاوت پر مهال ددغو دواړو ویل ضروري دي.
- «بسم الله الرحمن الرحیم» د خپلې ژبې ورد وګرځوي او مینه ورسره ولري.

**اړینه پوهه:**

تعوذ (اعوذ بالله من الشیطان الرجیم) او تسمیه (بسم الله الرحمن الرحیم) دواړه په لمانځه کې سنت دي. ژباړه یې داده: له رټل شوی شیطانه خدای ﷻ ته پناه وړم.

او شروع کوم په نامه د الله تعالی چې ډېر مهربانه او بې اندازې رحم کوونکی دی.

او دا د الله تعالی امر دی فرمایي چې کله مو قرآن لوستلو، نو له شیطان څخه په الله پناه وغواړئ.

آیت: (فَإِذَا قَرَأْتَ الْقُرْآنَ فَاسْتَعِذْ بِاللّٰهِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيمِ).

او په حدیث شریف کې راځي: (عن ابی سعید الخدری عن النبیﷺ اعوذ با لله سمیع العلیم من الشیطان الرجیم).

**د لوست مرستندوی توکي:** درسي کتاب، قلم، کتابچه، تباشیر، تخته او داسې نور.

**د تدریس طریقه:** تشریحي، سوال او ځواب ګروپي او داسې نور.

| وخت | د ښوونکي فعالیت | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| مقدمه ۵دقیقې | ښاغلی ښوونکی له مقدماتي موضوعګانو وروسته د تېر لوست ارزونه کوي.<br>د بېلګې په توګه:<br>● څوک ویلای شي چې ثناء څه شی ده؟<br>● ثناء (سبحانک اللهم وبحمدک............) څوک ویلای شي؟<br>● دا کلمې څوک هجاء کولای شي: اللهم، تبارک، وبحمدک، جدک، غیرک؟ | مقدماتي چارې په ښه توګه ترسره کوي.<br>پوښتنو ته ځوابونه ورکوي. |
| د لوست بهیر | له ځوابو اورېدلو وروسته د نوي لوست د سرلیک په هکله پوښتنه کوي چې لمونځ په څه سره پیل کېږي او تعوذ څه ته وایي: بیا وروسته د نوي لوست سرلیک پر تخته لیکي لمونځ (۲).<br>بیا لوست په لوړ آواز سره وایي او زده کوونکي یې ورپسې په لوړ آواز بدرګه کوي، وروسته د لوست ځینې کلمې په زده کوونکو باندې هجاء کوي او حرفونه ورباندې یو له بل سره نښلوي. وروسته له ځینو زده کوونکو غواړي چې لوست د کتاب له مخې ولولي. وروسته زده کوونکي دیته هڅوي چې دغه | په لوست کې فعاله ونډه اخلي. |

| | | |
|---|---|---|
| | لوست (تعوذ او تسمیه) حفظ کړي، وروسته زده کوونکو ته وخت ورکوي څو له ښوونکي وپوښتي او د ښوونکي له خوا ځوابونه واوري. | |
| | **د لوست لنډيز:**<br>وروسته د لوست لنډيز ورته بیانوي:<br>تعوذ: اعوذ بالله من الشیطان الرجیم ته ویل کېږي.<br>تسمیه: بسم الله الرحمن الرحیم ته ویل کېږي. | لنډيز اوري. |
| | **ارزونه:**<br>۱ـــ تعوذ څه ته ویل کېږي؟<br>۲ـــ تسمیه څه ته وایي؟ | زده کوونکي پوښتنو ته ځوابونه وايي. |
| | **کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکو ته وایي چې تعوذ او تسمیه دواړه په خپلو کتابچو کې ولیکي او د هرې کلمې حرفونه سره هجا کړي. | کورنۍ دنده ترسره کوي. |

**دیارلسم: لوست**

## سرلیک: لمونځ (۳)

**مخ: ۲۷**

**وخت: دوه درسي ساعتونه**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- فاتحه سورت د کتاب له مخې په ښه توګه ولوستلی شي.
- فاتحه سورت حفظ کړي.
- د فاتحې سورت کلمې هجاء کړی شي.
- د فاتحې سورت له هجایي او رواني لوستلو سره بلد شي.
- د فاتحې سورت زده کړه د اهمیت وړ وبولي.

**اړینه پوهه:**

فاتحه سورت د قرآن کریم لومړنی سورت دی، دې سورت ته د قرآن کریم خلاصه او لنډیز هم ویل کېږي، لکه چې الله فرمايي: (وَلَقَدْ آتَيْنَاكَ سَبْعًا مِّنَ الْمَثَانِي وَالْقُرْآنَ الْعَظِيمَ) یعنې موږ تاته اووه تکراري آیتونه درکړي او قرآن عظیم. معلومه شوه چې دا اووه آیتونه مجمل کتاب او نور مفصل کتاب دی. او بل داچې ټول قرآن کریم په څلورو برخو وېشل شوی په دې ډول د قرآن د پیل سورت په الحمدلله پیل شوی بیا تر انعام پورې بل په الحمدلله نه دی پیل شوی. په دې برخه کې په غالبه توګه د الله خالقیت بیانېږي یعنې د ټولو کایناتو خالق او پیداکوونکی الله تعالی دی. دویمه برخه د انعام سورت څخه پیلیږي تر الکهف پورې چې هغه هم په الحمدلله پیل شوی او په دې برخه کې په غالبه توګه د الله تربیت بیانېږي یعنې څه چې الله پیدا کړي د هغو ټولو پالونکی او مربي هم الله دی.

دریمه برخه د کهف له سورت څخه پیلېږي تر سبا او فاطر پورې چې دا هم دواړه په الحمدلله سره پیل شوي او په دې برخه کې په غالبه توګه د الله برکات او مهرباني بیانېږي یعنې د دنیا او آخرت برکات او ښېګڼې هم مخلوقاتو ته الله ورکوي او څلورمه برخه له سبا او فاطر څخه تر والناس پورې ده. په دې برخه کې په غالبه توګه د قیامت بیان کېږي.

همدا د قرآن کریم څلور واړه برخې په الحمدلله کې په لنډه توګه بیان شوې دي په دې توګه: الحمدلله: الله تعالی ته کامله صفتونه دي، علما وايي دلته ذکر د الله مراد ځینې خالق دی، خالقیت پکې راغی. رب العلمین: پالونکی د ټولو مخلوقاتو الله دی، تربیت پکې راغی، الرحمن الرحیم: الله ډېر مهربان او بې اندازې رحیم دی، برکات پکې راغلل. او مالک یوم الدین: د قیامت او جزا د ورځې واکدار او پادشاه الله دی په دې برخه کې قیامت راغی نو نتیجه دا شوه چې پیداکوونکی الله ﷻ دی، پالونکی الله دی، برکات او نعمتونه الله ورکوي او مرګ هم د الله په لاس دی، نو معلومه شوه چې عبادت هم باید د ده وشي او کومک هم باید له الله ﷻ څخه وغوښتل شي. نو ځکه وایو: «ایاک نعبد و ایاک نستعین» لنډه دا چې د قرآن څلور واړه برخې تردې ځایه ختمې شوې کله چې قرآن ختم شي نو بیا سرې دعا کوي، نو وایو: (اهدِنَــــــــــا الصِّرَاطَ الُمستَقِيمَ * صِرَاطَ الَّذِينَ أَنعَمتَ عَلَيهِمْ غَيرِ المَغضُوبِ عَلَيهِمْ وَلاَ الضَّالِّينَ) (آمین).

یعنې ای الله چې د داسې کامله صفتونو خاوند یې، موږ ته نیغه او مستقیمه لاره وښیه، د هغو کسانو لاره چې تا وربانذې انعام کړی دی چې هغه د انبیاوو، صدیقینو،(صحابه وو) شهداوو او ټولو نیکانو لاره ده.

(وَمَن يُطِعِ اللّهَ وَالرَّسُولَ فَأُوْلَـــئِكَ مَعَ الَّذِينَ أَنْعَمَ اللّهُ عَلَيْهِم مِّنَ النَّبِيِّينَ وَالصِّدِّيقِينَ وَالشُّهَدَاء وَالصَّالِحِينَ وَحَسُنَ أُولَـــئِكَ رَفِيقًا) د النساء سورت آیت ۶۹.

نو کله چې يو څوک په داسې نيغه لاره روان شي چې په هغې ټول انبياء، ټول صحابه، د ټولو امتونو شهيدان او د ټولو امتونو نيکان خلک روان وي، ايا هغه به د منزل مقصود څخه پاتې شي؟ بيا په داسې حال کې چې د هغوی په هکله الله فرمايي چې دا ډېر ښه ملګري دي. څوک چې د دوی سره ملګری شو هغه بيا په لار کې نه پريږدي. او د غضب شوو او لار ورکو له لارې مو وساته چې هغوی يهود او نصارا او ټولې باطلې ډلې او فرقې دي.

**د لوست مرستندوی توکي:** درسي کتاب، قلم، کتابچه، تباشير، تخته او داسې نور.

**د تدريس طريقه:** تشريحي، سوال او ځواب ګروپي او داسې نور.

| وخت | د ښوونکي فعاليت | د زده کوونکو فعاليتونه |
|---|---|---|
| مقدمه ۵دقيقې | ښاغلی ښوونکی له مقدماتي موضوعګانو وروسته د تېر لوست ارزونه کوي.<br>مثلاً:<br>• څوک کولای شي تعوذ ووايي؟<br>• څوک کولای شي تسميه په صحيح توګه ووايي؟<br>• څوک «بسم الله الرحمن الرحيم» هجا کولی شي؟ | مقدماتي چارې په ښه توګه ترسره کوي.<br><br>پوښتنو ته ځوابونه ورکوي. |
| د لوست بهير | له ځوابونو اورېدلو وروسته د نوي لوست د سرليک په هکله پوښتنه کوي چې آيا فاتحه سورت پيژنئ؟<br>له دې وروسته په نوي لوست پيل کوي. په لوړ آواز فاتحه سورت لولي او زده کوونکي يې ورسره بدرګه کوي، بيايې په هجايي توګه ورته لولي او دريم ځل يې بيا ورته په رواني تلاوت کوي. بيا زده کوونکو ته وخت ورکوي څو دوی يو د بل څخه پوښتنې وکړي.<br>بالآخره د لوست خلاصه ورته وايي او په دې يې پوهوي چې د الحمدلله ويل د لمانځه په هر رکعت کې واجب ده. | په لوست کې فعاله ونډه اخلي. |
| | **ارزونه:**<br>۱ــ فاتحه سورت کوم سورت ته ويل کېږي؟<br>۲ــ فاتحه سورت څوک له ياده ويلای شي؟<br>۳ــ د فاتحې سورت لاندې کلمې څوک هجا کولی شي: الحمدلله، رب، العالمين، نستعين، الصراط، انعمت، المغضوب، ولا الضالين. | زده کوونکي پوښتنو ته ځوابونه وايي. |

**څوارلسم: لوست**

## سرلیک: «لمونځ» (اخلاص سورت)

**مخ: ۲۹**

**وخت: دوه درسي ساعتونه**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- د اخلاص سورت وپیژني.
- د اخلاص سورت له یاده وویلای شي.
- د اخلاص سورت ستونزمنې کلمې هجا کړای شي.
- د اخلاص په سورت کې زبرونه، زیرونه، پېښونه، شد، غړوندی او اشباعي پېښ په سمه توګه وپیژني.
- د اخلاص سورت له لوستلو او یادولو سره مینه څرګنده کړي.

**اړینه پوهه:**

**د ځینو کلماتو معناوې:**

احد: یکي یو

الصمد: بې نیاز.

لم یلد: څوک یې نه دی زېږولی (اولاد نه لري).

ولم یولد: او نه دی له چا څخه زیږیدلی دی (پلار نه لري).

کفوا: سیال، مثل.

د اخلاص سورت ژباړه: ووایه (ای محمده)! هغه الله دی، یوازې یو، الله هیچا ته اړ نه دی او ټول هغه ته اړ دي، نه هغه څوک زېږولي او نه هغه زیږول شوی دی. او هېڅوک د هغه سیال نشته.

**د اخلاص د سورت فضلیت:**

اخلاص سورت د توحید په هکله ډېر غوره سورت دی. تل به کافرانو الله ته د زامنو او لورانو نسبت کاوه، یهودو به عزیرعلیه السلام ته د الله زوی ویل او عیسویانو به حضرت عیسیعلیه السلام ته کله د الله زوی ویل، کله به یې د الله نسبت ورته کاوه، مشرکانو به ملایکه وو ته د الله لوڼې ویلې او له الله سره یې شریکان نیولي وو. نو الله دغه سورت نازل کړ چې الله نه زوی لري او نه پلار لري او نه شریک لري. علما لیکي چې شریک په درې ډوله وي یا تر ځان ټیټ وي یا تر ځان لوړ وي او یا له ځان سره برابر وي. نو الله په دغه سورت کې درې واړه شریکان له ځانه نفی کړل؛ داسې چې الله زوی نه لري چې له سرې نه ټیټ وي په «لم یلد» سره. او پلار نه لري چې پلار ترسرې لوړ وي په «لم یولد» سره او نه سیال او برابر شریک لري په «لم یکن له کفوا احد» سره. نو ثابته شوه چې الله تعالی یو دی. او هېڅ شریک نه لري.

**د لوست مرستندوی توکي:** درسي کتاب، قلم، کتابچه، تباشیر، تخته او داسې نور.

**د تدریس طریقه:** تشریحي، سوال او ځواب ګروپي او داسې نور.

| وخت | د ښوونکي فعالیت | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| مقدمه<br>۵دقیقې | ښاغلی ښوونکی له مقدماتي موضوعګانو وروسته د تېر لوست ارزونه کوي.<br>او وایې:<br>• فاتحه سورت څوک له یاده ویلای شي؟<br>• دغه کلمې: «نعبد، نستعین، المستقیم، انعمت» څوک هجا کولای شي؟ | مقدماتي چارې په ښه توګه ترسره کوي.<br><br>پوښتنو ته ځوابونه ورکوي. |

| | | |
|---|---|---|
| د لوست بهیر | له ځواب اورېدلو وروسته د نوي لوست د سرلیک معلومولو په هکله پوښتنه کوي: آیا اخلاص سورت پيژنئ؟<br>وروسته د نوي لوست سرلیک لمونځ (۴) «اخلاص سورت» پر تخته لیکي او لوست پیلوي او اخلاص سورت په لوړ آواز سره لولي او زده کوونکي يې ورپسې تکراروي. وروسته ددغه سورت کلمې ورته هجاء کوي او زبرونه، زیرونه، پيښونه، شد او غړوندی او نور... ورته ښيي او د کلمو یو ځای کول هم ورته په ګوته کوي.<br>له هغه وروسته دوی ته وخت ورکوي څو یو له بل پوښتنې وکړي. | په لوست کې فعاله ونډه اخلي. |
| | **د لوست لنډيز:**<br>او بالآخره ښوونکی ورته د لوست لنډیز وايي.<br>دغه اخلاص سورت دی او ددې سورت ویل دومره ثواب لري لکه څوک چې د قرآن دریمه برخه ولولي. | |
| | **ارزونه:**<br>بیا خپل زده کوونکي ارزوي:<br>۱ـــ اخلاص سورت کوم سورت ته ویل کېږي؟<br>۲ـــ اخلاص سورت له یاده ولولئ؟<br>۳ـــ د اخلاص سورت دغه کلمې: قل، احد، الصمد، کفواً – هجا کړئ؟ | زده کوونکي پوښتنو ته ځوابونه وايي. |
| | **کورنۍ دنده:**<br>په پای کې کورنۍ دنده ورکوي:<br>اخلاص سورت حفظ کړئ. | کورنۍ دنده په ښه توګه ترسره کوي. |

پنځلسم: لوست

## سرلیک: لمونځ (۵) (د رکوع تسبیحات)

**مخ: ۳۱**

**وخت: یو درسي ساعت**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- د رکوع تسبیحات وپیژني.
- د رکوع تسبیحات وویلای شي.
- د رکوع د تسبیحاتو په معنا وپوهېږي.
- د رکوع تسبیحات یاد کړای شي.
- رکوع په عملي توګه اداء کړاي شي.
- د رکوع د سمې اداء کولو سره مینه څرګنده کړي.

**اړینه پوهه:**

**د ځینو کلماتو معنا:**

سبحان: پاکي ده

ربي: زما رب (پالونکی)

العظیم: ډېر لوی

کله چې په لمانځه کې رکوع ته ځو او وایو: (سُبْحَانَ رَبِّيَ الْعَظِيمِ) یعنې پاکي ده زما لوی رب (پالونکی) ته له ټولو نقصانونو او عیبونو څخه. نو باید په دغه وخت کې د الله عظمت زموږ په زړونو کې هم راشي او دا عقیده هم ولرو چې الله تر ټولو کایناتو (ځمکو، غرونو، دریابونو، اسمانونو) څخه لوی او د قدرت او دبدبې خاوند دی.

د سترګو په رپ کې دنیا په بل مخ اړولي شي او څه شي ته چې محضې اراده وکړي، هغه کار شوی وي (د الله کار په کن فیکون سره دی). کن: شه، فیکون: نوکېږي.

په حدیث شریف کې راځي چې دا ځمکې او اسمانونه د الله د کرسۍ په پرتله داسې حیثیت لري لکه په یوه لویه دښته کې چې یوه وړه کړۍ پرته وي یعنې ځمکه او آسمانونه یوه کړۍ وي او کرسي لویه دښته وي او دا کړۍ په دغه دښته کې پرته وي. او بیا د الله کرسۍ د عرش په پرتله همداسې حیثیت لري یعنې لکه کرسۍ چې یوه کړۍ وي او عرش لویه دښته وي او دا کړۍ پکې پرته وي.

**د لوست د تدریس طریقه:** تشریحي، سوال ځواب، ګروپي، مسابقوي او....

**مرستندوی توکي:** د قرائت کست، چارټونه او داسې نور.....

| وخت | د ښوونکي فعالیت | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| مقدمه ۵دقیقې | ښاغلی ښوونکی له مقدماتي چارو وروسته د تېر لوست ارزونه کوي. او وایي:<br>● څوک ویلای شي چې اخلاص سورت کوم سورت دی؟<br>● اخلاص سورت څوک له یاده ویلای شي؟<br>● د اخلاص سورت دغه کلمې: «احد، الصمد، لم یلد، ولم یولد، کفوا» څوک هجا کولای شي؟<br>وروسته د نوي لوست سرلیک د رکوع تسبیحات «سبحان ربی العظیم» پر تخته | مقدماتي چارې په ښه توګه ترسره کوي.<br><br>پوښتنو ته ځوابونه ورکوي. |

| د لوست بهیر | لېکلي او څو ځله يې په لوړ آواز سره تکراروي او زده کوونکي يې ورپسې وايي.<br>بيا يې کلمې ورته هجا کوي او په عين حال کې يې په هجايي توګه هم ورته وايي.<br>بيا دا کلمې ورته ژباړي او دوی ته وخت ورکوي چې له ښوونکي څخه پوښتنې وکړي او ښوونکی ورته په ډېره مينه او محبت ځواب ورکوي. | په لوست کې فعاله ونډه اخلي. |
|---|---|---|
| | **ارزونه:**<br>**۱ـــ د رکوع تسبيحات څه دي؟**<br>**۲ـــ د رکوع تسبيحات ووايئ؟**<br>**۳ـــ «سبحان» څه معنا لري؟**<br>**۴ـــ «ربی العظيم» معنا کړئ؟**<br>**۵ـــ په رکوع کې دا تسبيحات څو ځله ويل کېږي؟** | زده کوونکي پوښتنو ته ځوابونه وايي. |
| | **کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکي بايد در کوع تسبيحات حفظ کړي. | کورنۍ دنده په ښه توګه ترسره کوي. |

**شپاړلسم: لوست**

## سرليک: لمونځ (۶) (سَمِعَ اللهُ لِمَنْ حَمَدِهٗ رَبَّنَا وَلَکَ الْحَمْدُ)

**مخ: ۳۳**

**وخت: يو درسي ساعت**

**موخې: زده کوونکي بايد:**

- د «سمع الله لمن حمده ربنا لک الحمد» د ويلو ځای او وخت وپېژني.
- په دې هم پوه شي چې په امام پسې يوازې ربنا لک الحمد ويل کېږي.
- او که تنها لمونځ کوي نو بايد دواړه کلمې ووايي.
- د لوست له يادولو سره مينه وښيي.

**اړينه پوهه:**

د «سمع الله لمن حمده ربنا ولک الحمد» ژباړه: اوري الله (قبلوي الله) څوک چې دده ستاينه کوي (او وايي) ای زموږ پالونکيه او خاص تالره ستاينه ده (د کامله صفتونو خاوند يې).

«سمع الله لمن حمده» جزء ته تسميع او «ربنا ولک الحمد» جزء ته تحميد ويل کېږي.

«سمع الله لمن حمده ربنا ولک الحمد» بايد ټول په ولاړه (نېغ دريدو) وويل شي چې دغې دريدو ته قومه ويل کېږي او قومه په لمانځه کې واجب ده.

او په الله اکبر ويلو سره سجدې ته لاړ شي او الله اکبر ترسجدې پورې ورسېږي.

**د لوست مرستندوی توکي:** درسي کتاب، قلم، کتابچه، تباشير، تخته او داسې نور.

**د تدريس طريقه:** تشريحي، سوال او ځواب ګروپي او داسې نور.

| وخت | د ښوونکي فعاليت | د زده کوونکو فعاليتونه |
|---|---|---|
| مقدمه ۵دقيقې | ښاغلی ښوونکی له مقدماتي چارو وروسته د تېر لوست ارزونه کوي. او وايي:<br>• د رکوع تسبيحات څوک ويلای شي؟<br>• د رکوع تسبيحات بايد څو وارې وويل شي؟<br>• د رکوع د تسبيحاتو معنا څوک ويلای شي؟<br>له ځواب اورېدلو وروسته د نوي لوست سرليک پر تخته ليکي «سمع الله لمن حمده ربنا لک الحمد». | مقدماتي چارې په ښه توګه ترسره کوي.<br>پوښتنو ته ځوابونه ورکوي. |
| د لوست بهير | او په لوړ آواز يې وايي او زده کوونکي يې پسې تکراروي.<br>بيا ښوونکی دا الفاظ ورته هجا کوي او معنا کوي يې هم ورته، بيايې پر څو زده کوونکو لولي او دی يې غلطي ور اصلاح کوي.<br>بيا زده کوونکي په دوو ډلو وېشي څو يوه ډله «سمع الله لمن حمده» او بله ډله «ربنا لک الحمد» په خپلو کې سره هجا او معنا کړي. | په لوست کې فعاله ونډه اخلي. |
| | **د لوست لنډيز:**<br>بيا ښوونکی لوست په لنډو الفاظو کې ورته ژباړي د مثال په توګه: څوک چې د الله ستاينه کوي الله تعالی يې اوري (قبلوي يې) ای زموږ ربه (پالونکيه) ټولې ستاينې او د کمال صفتونه تا لره دي. | |

| | | |
|---|---|---|
| | **ارزونه:**<br>**۱ــ کله چې د رکوع څخه سرې پورته کېږي، نو کوم کلمات وایي؟**<br>**۲ــ د «سمع الله لمن حمده »معنا ووایئ؟**<br>**۳ــ ربنا لک الحمد هم وژباړئ؟**<br>**۴ــ دا کلمات: سمع، حمده، لک الحمد، هجا کړئ؟** | **زده کوونکي پوښتنو تــه ځوابونه وایي.** |
| | **کورنۍ دنده:**<br>**زده کوونکو ته دنده ورکوي څو ننني لوست په خپلو کتابچو کې ولیکي.** | **کورنۍ دنده په ښه توګه ترسره کوي.** |

اوولسم: لوست

## سرلیک: لمونځ (د سجدې تسبیحات)

**مخ: ۳۵**

**وخت: یو درسي ساعت**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- د سجدې تسبیحات په ښه توګه وویلای شي.
- د سجدې تسبیحات وپیژني.
- د سجدې د تسبیحاتو زده کړه اړینه وبولي.
- په دې پوه شي چې د سجدې تسبیحات کوم لفظونه دي.
- د سجدې د تسبیحاتو په معنا وپوهېږي.

**اړینه پوهه:**

**د ځینو کلمو معناوې:**

سبحان: پاکي ده

ربی الاعلی: زما ډېر لوړ او اعلی مرتبه خدای ته.

د سجدې تسبیحات (سُبْحَانَ رَبِّي الْاَعْلى) یعنې زما اعلی پالونکي لره د ټولو عیبونو او نقصانونو څه پاکي ده.

دغه تسبیحات په سجده کې درې ځله یا پنځه ځله یا اووه ځله او یا تر دې زیات (طاق) ویل کېږي. خو یوه خبره باید په یاد ولرو چې دغه تسبیحات د زړه په حضور او ډېر په درناوی وویل شي.

په حدیث شریف کې راځي چې بنده کله په سجده پروت وي او تندی په ځمکه مږي او دا تسبیحات وایي، نو په دغه حالت کې الله پاک ته تر ټولو حالتونو ډېر نږدې وي، ځکه د الله په وړاندې دا د عاجزۍ او ذلت انتهایي درجه ده د حذیفهؓ څخه روایت دی وایي د نبی کریمﷺ سره مې لمونځ وکړ نو هغه په رکوع کې سبحان ربی العظیم او په سجده کې یې سبحان ربی الاعلی ویله. او کله چې «فسبح باسم ربک العظیم» آیت نازل شو نو نبی کریمﷺ وفرمایل چې دا په رکوع کې ووایئ.

او کله چې (سبح اسم ربک الاعلی) نازل شو نو نبی کریمﷺ وفرمایل چې دا په سجده کې ووایئ. او د دوو سجدو ترمنځ کیناستلو ته جلسه ویل کېږي باید دومره درنګ پکې وشي څو بدن تقرر ونیسي او دا جلسه واجب ده.

**د لوست مرستندوی توکي:** درسي کتاب، قلم، کتابچه، تباشیر، تخته او داسې نور.

**د تدریس طریقه:** تشریحي، سوال او ځواب ګروپي او داسې نور.

| وخت | د ښوونکي فعالیت | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| مقدمه ۵دقیقې | ښاغلی ښوونکی له مقدماتي چارو وروسته د تېر لوست ارزونه کوي. د بېلګې په توګه:<br>• څوک ویلای شي چې له رکوع څخه د راپورته کېدو پرمهال څه ویل کېږي؟<br>• د «سمع الله لمن حمده ربنا لک الحمد» د ویلو ځای کوم دی؟<br>• که په امام پسې ولاړوو په دغو دواړو کلمو کې کومه کلمه امام وایي او کومه مقتدیان؟ | مقدماتي چارې په ښه توګه ترسره کوي.<br><br>پوښتنو ته ځوابونه ورکوي. |

| د لوست بهیر | له دې وروسته د نوي لوست د سرلیک معلومولو لپاره پوښتنه کوي او وایي: ایا د سجدې تسبیحات پیژنئ؟<br>له دې وروسته د نوي لوست سرلیک پر تخته لیکي د «سجدې تسبیحات» (سبحان ربی الاعلی). وروسته دا کلمې په لوړ آواز سره لولي او زده کوونکي یې ورپسې بدرګه کوي. بیا یې په ګډو زده کوونکو وایي. او کله چې په الفاظو یې وپوهېدل، بیا یې ورته معنا کوي او بیا زده کوونکو ته وخت ورکوي څو د ښوونکي څخه پوښتنې وکړي او ښوونکی ورته په ډېره مینه ځوابونه وایي. | په لوست کې فعاله ونډه اخلي. |
|---|---|---|
| | **د لوست لنډیز:**<br>ورپسې د لوست لنډیز ورته وایي:<br>د سجدې د تسبیحاتو لنډه ژباړه داده چې زما اعلی (تر ټولو لوړ او لوی الله له هر ډول عیبونو او نقصانونو څه پاک دی). | |
| | **ارزونه:**<br>۱ـــ ایا د سجدې تسبیحات مو وپېژندل؟<br>۲ـــ سبحان ربی الاعلی په سجده کې څو ځله لوستل کېږي؟<br>۳ـــ په یوه رکعت کې څو رکوع ګانې او څو سجدې دي؟<br>۴ـــ دا کلمې بشپړ کړئ: سبحان............. الاعلی........... ربی الاعلی؟ | زده کوونکي پوښتنو ته ځوابونه وایي. |
| | **کورنۍ دنده:**<br>له زده کوونکو څخه غواړي د سجدې تسبیحات درې ځله په خپلو کتابچو کې ولیکي. او د کتاب ارزونه دې هم حل کړي. | کورنۍ دنده په ښه توګه ترسره کوي. |

**اتلسم: لوست**

## سرلیک: لمونځ (تشهد)

**مخ: ۳۷**

**وخت: یو درسي ساعت**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- تشهد وپيژني.
- تشهد په سمه توګه ولوستلای شي.
- تشهد حفظ کړي.
- د تشهد له يادولو سره مينه څرګنده کړي.

**اړينه پوهه:**

**د ځينو کلمو معناوې:**

التحيات: ټولې تحفې او ډالۍ.

والصلوة: (بدني عبادتونه).

والطيبات: (مالي عبادتونه) ټول الله لره دی.

اَلتَّحِيَّاتُ لله وَالصَّلَوَاةُ وَالطَّيِّبَاتُ.

یعنې ټولې تحفې او ډالۍ (قولي عبادتونه) خاص يو الله لره دي او بدني عبادتونه او مالي عبادتونه هم الله لره دي، بدني عبادتونه لکه لمونځ، روژه، مالي عبادتونه لکه زکوة، صدقې او خيراتونه.مالي او بدني دواړه لکه حج، جهاد او داسې نور.

دا هم باید ووایو چې دغه تشهد ته د ابن مسعودؓ تشهد ویل کېږي یعنې نبی کریمﷺ ابن مسعودؓ ته دا تشهد ورښودلی دی.

او تشهد په اوله قعده کې سنت او په وروستنۍ قعده کې واجب دی.

**د لوست مرستندوی توکي:** درسي کتاب، قلم، کتابچه، تباشير، تخته او داسې نور.

**د تدريس طريقه:** تشريحي، سوال او ځواب ګروپي او داسې نور.

| وخت | د ښوونکي فعاليت | د زده کوونکو فعاليتونه |
|---|---|---|
| مقدمه ۵دقيقې | ښاغلی ښوونکی له مقدماتي چارو وروسته د تېر لوست ارزونه کوي.<br>لکه:<br>● څوک ويلای شي چې په سجده کې کومې کلمې ويل کېږي؟<br>● «سبحان ربی الاعلی» څوک هجاء کولای شي؟<br>● د الله د ستاينې کلمې په سجده کې څو ځله تکرارېږي؟ | مقدماتي چارې په ښه توګه ترسره کوي.<br><br>پوښتنو ته ځوابونه ورکوي. |
| د لوست بهير | له ځوابونو اورېدلو وروسته د نوي لوست د سرليک په هکله پوښتنه کوي ايا تشهد پيژنئ؟<br>ورپسې نوی لوست پر تخته ليکي، په لوړ آواز يې لولي او زده کوونکي يې ورپسې تکراروي.<br>بيا يې په څو تنو زده کوونکو لولي، څو لوست په ښه توګه ټول زده کړي، ورپسې د لوست ستونزمنې کلمې هجاء کوي او په هجايي او رواني توګه يې په | په لوست کې فعاله ونډه اخلي. |

| | | |
|---|---|---|
| | زده کوونکو وايي بيا څو تنه په وار سره د تختې مخې ته راغواړي او يــوه يــوه کلمه پرې تکراروي او هم يې پرې هجا کوي. | |
| | **د لوست لنډيز:**<br>بالآخره د لوست لنډيز ورته وړاندې کوي:<br>په دې لوست کې له تشهد څخه درى کلمې راغلي دي التحيات لله والــصلوات والطيبات دا درې واړه کلمې بايد په سمه توګه حفظ شي. | لنډيز ته غوږ نيسي. |
| | **ارزونه:**<br>بيا زده کوونکي ارزوي څو ډاډمن شي:<br>**۱ـــ** لاندې کلمې هجا کړئ: التحيات لله، والصلوات، والطيبات؟<br>**۲ـــ** التحيات لله والصلوات والطيبات..... د لمانځه په کوم حالت کــې ويــل کېږي؟<br>**۳ـــ** په لمانځه کې ناستې ته څه ويل کېږي؟ | زده کوونکي پوښتنو تــه ځوابونه وايي. |
| | **کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکو ته دنده ورکوي چې نوى لوست په خپلو کتابچو کې وليکــي او د کتاب ارزونه هم حل کړي. | کورنۍ دنده په ښه توګه ترسره کوي. |

**نولسم: لوست**

## سرلیک: لمونځ (۹) (د تشهد پاتې برخه)

**مخ: ۳۹**

**وخت: یو درسي ساعت**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- نوي لوست په ښه توګه ولوستلا شي.
- نوي لوست هجا کړای شي.
- نوي لوست په هجايي او رواني توګه زده کړي.
- د توان په کچه د لوست په معنا وپوهېږي.
- له لوست سره مینه وښيي.

**اړینه پوهه:**

**د ځینو کلماتو معناوې:**

السلام: بشپړه سلامتیا.

علیک: پرتا.

النبی: خبر راوړونکی (پیغمبر)

رحمة الله: د الله رحمتونه.

وبرکاته: او د الله برکتونه.

«السلام علیک ایا النبی ورحمة الله وبرکاته».

ژباړه: سلامتیا دې وي پرتا ای د الله نبي او د الله رحمتونه او د الله برکتونه دې وي پر تا باندې.

**د لوست مرستندوی توکي:** درسي کتاب، قلم، کتابچه، تباشیر، تخته او داسې نور.

**د تدریس طریقه:** تشریحي، سوال او ځواب ګروپي او داسې نور.

| وخت | د ښوونکي فعالیت | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| مقدمه ۵دقیقې | ښاغلی ښوونکی له مقدماتي چارو وروسته د تېر لوست ارزونه کوي. لکه:<br>• څوک ویلای شي چې تشهد څه ته وایي؟<br>• څوک ویلای شي چې په لمانځه کې ناستې ته څه ویل کېږي؟<br>• دا کلمې «التحیات، والصلوات، والطیبات» څوک هجاء کولی شي؟<br>له ځوابونو اوربدلو وروسته د نوي لوست په هکله انګیزه پیداکوي مثلاً: د تشهد پاتې برخه څه ده؟ | مقدماتي چارې په ښه توګه ترسره کوي.<br>پوښتنو ته ځوابونه ورکوي. |
| د لوست بهیر | وروسته د نوي لوست سرلیک سره له لوسته پر تخته لیکي او په ویلو يې پیل کوي، په لوړ آواز يې وایي او زده کوونکي يې پسې تکراروي.<br>بیا یو یو زده کوونکی د ټولګي مخې ته راغواړي او لوست پرې وایي.<br>وروسته په ځینو زده کوونکو لوست هجاء کوي او په څو نورو زده کوونکو يې په هجايي توګه او په څو نورو يې په رواني ټوګه لولي. وروسته زده کوونکو ته د پوښتنو لپاره وخت ورکوي، څو پوښتنې وکړي ښوونکی په خوښۍ ځوابونه وايي. | په لوست کې فعاله ونډه اخلي. |

| | | |
|---|---|---|
| | **د لوست لنډیز:**<br>**وروسته لوست ورته لنډوي او وايي:**<br>**«السلام علیک ایها النبی ورحمة الله وبرکاته».**<br>**یعنې بشپړه سلامتیا دې وي پر تا ای د الله رسوله او د الله رحمتونــــه او برکتونــــه دې هم پر پیغمبرﷺ باندې وي.** | **لنډیز ته غوړ نیسي.** |
| | **کورنۍ دنده:**<br>**باید لوست په خپلو کتابچو کې درې درې ځلې ولیکي او دغه کلمې: الــــسلام، «ایها النبی، رحمة الله، برکاته» هجاء کړي او د خپل ملا امام په مرسته وپوهېږي چې په «برکاته» کې د «ه» ضمیر چا ته راجع دی؟** | **کورنۍ دنده په ښه توګه ترسره کوي.** |

**شلم: لوست**

## سرلیک: لمونځ (۱۰) (د تشهد پاتې برخه)

**مخ: ۴۱**

**وخت: یو درسي ساعت**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- لوست په سمه توګه ولوستلا شي.
- وپوهېږي چې دا هم د تشهد برخه ده.
- ځینې کلمې هجاء کړي.
- د نوي لوست کلمې ولیکلی شي.
- د هر نوي لوست سره یې مینه او علاقه ټینګه شي.

**اړینه پوهه:**

**د ځینو کلمو معناوې:**

علینا: پر موږ باندې

عباد الله: د الله بندګان

الصالحین: صالح اعمالو خاوندان

اَلسَّلَامُ عَلَیْنَا وَعَلیٰ عِبَادَ اللهِ الصَّالِحِیْنَ:

سلامتیا دې وي پر موږ او د الله پر ټولو صالحو بندګانو باندې.

په حدیث کې راغلي چې کله مو دا کلمې وویلې، نو د الله په ټولو صالحو بندګانو مو سلام ووایه.

**د لوست مرستندوی توکي:** درسي کتاب، قلم، کتابچه، تباشیر، تخته او داسې نور.

**د تدریس طریقه:** تشریحي، سوال او ځواب ګروپي او داسې نور.

| وخت | د ښوونکي فعالیت | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| مقدمه ۵دقیقې | ښاغلی ښوونکی له مقدماتي چارو وروسته د تېر لوست ارزونه کوي. لکه:<br>• څوک کولای شي تشهد له یاده ووایي؟<br>• څوک ویلای شي چې التحیات څه ته وایي؟<br>• څوک ویلای شي چې له والصلوات والطیبات څخه څه مراد دي؟<br>له دې وروسته د نوي لوست د سرلیک په هکله پوښتنه کوي:<br>تشهد کوم ځای ته رسېدلی دی؟ | مقدماتي چارې په ښه توګه ترسره کوي.<br>پوښتنو ته ځوابونه ورکوي. |
| د لوست بهیر | له ځواب اورېدلو وروسته ښوونکی په نوي لوست پیل کوي او لوست په لوړ آواز سره وایي او زده کوونکي یې هم ورپسې په لوړ آواز تکراروي.<br>وروسته له زده کوونکو څخه د لوست د کلمو د هجاء په هکله پوښتنې کوي او د ځینو کلمو د حرکاتو په هکله هم زده کوونکو ته معلومات ورکوي.<br>بیا لوست په یوه یوه زده کوونکي لولي او دی یې په خپله غلطۍ ور اصلاح کوي. | په لوست کې فعاله ونډه اخلي. |

| | | |
|---|---|---|
| | **د لوست لنډيز:**<br>**بالآخره د لوست لنډيز ورته بيانوي په دې توګه:**<br>**د التحيات: معنا ده ډالۍ او تحفې، مراد ورڅنې قولي عبادتونه دي.**<br>**د والصلوات: څخه مراد بدني عبادتونه دي.**<br>**او د والطيبات: څخه مراد مالي عبادتونه دي.** | **لنډيز ته غوږ نيسي.** |
| | **ارزونه:**<br>**۱ــ «التحيات» کلمه هجا کړئ؟**<br>**۲ــ «والصلوات» کلمه معنا کړئ؟**<br>**۳ــ «والطيبات» کلمه هم هجاء او هم معنا کړئ؟** | **ځوابونه وايي.** |
| | **کورنۍ دنده:**<br>**لوست په خپلو کتابچو کې ليکي.** | **کورنۍ دنده په ښه توګه ترسره کوي.** |

يوويشتم: لوست

## سرليک: لمونځ (۱۱) د تشهد وروستۍ برخه

**مخ: ۴۳**

**وخت: يو درسي ساعت**

**موخې: زده کوونکي بايد:**

- د تشهد وروستنۍ برخه په سمه توګه ولوستلی شي.
- کلمې يې هجاء کړی شي.
- په ياد يې ووايي.
- په معنا يې وپوهېږي.
- د اشهد له کلمې سره مينه وښيي.

**اړينه پوهه:**

**د ځينو کلماتو معناوې:**

اشهد: ګواهي اداء کوم.

لا اله الا الله: نشته بل معبود برحق پرته له يو الله څخه.

محمدا عبده ورسوله: محمدﷺ د الله بنده او رسول (استازی) دی.

نبی کريمﷺ فرمايي: څوک چې د شهادت کلمه ووايي، نو پورته خيژي ترڅو چې عرش ته ورسېږي.

او کله چې «اشهدان لا اله» ته ورسېدو، نو بايد د شهادت ګوته جګه کړو او په «الاالله» باندې يې بايد بيرته ښکته کړو البته دا سنت عمل دی. او طريقه يې داده چې غټه او منځۍ ګوته به سره حلقه شي او د شهادت ګوته به جګه شي.

د «اشهد ان لا اله الا الله» غوښتنه او تقاضا د الله تعالی لپاره د عمل خالصول او د «اشهدان محمد» غوښتنه او تقاضا د نبي کريمﷺ د متابعت خالصول دي. لنډه داچې هر عمل بايد خاص د الله تعالی لپاره وي. او د نبی کريمﷺ د طريقې سره موافق وي او که داسې نه وي، نو هغه عمل مردود دی.

**د لوست مرستندوی توکي:** درسي کتاب، قلم، کتابچه، تباشير، تخته او داسې نور.

**د تدريس طريقه:** تشريحي، سوال او ځواب ګروپي او داسې نور.

| وخت | د ښوونکي فعاليت | د زده کوونکو فعاليتونه |
|---|---|---|
| مقدمه ۵دقيقې | ښاغلی ښوونکی له مقدماتي چارو وروسته د تېر لوست ارزونه کوي.<br>او وايي:<br>• «السلام علينا وعلى عباد الله الصالحين» څوک ژباړلای شي؟<br>• دا کلمې څوک هجاء کولای شي؟<br>• دا کلمې څوک په سمه توګه په هجايي او رواني توګه لوستلای شي؟ | مقدماتي چارې په ښه توګه ترسره کوي.<br><br>پوښتنو ته ځوابونه ورکوي. |
| د لوست بهير | له ځوابونو اورېدلو وروسته ښوونکی د نوي لوست د سرليک په هکله پوښتنه کوي چې د تشهد وروستنۍ برخه څه ده؟<br>له ځواب اورېدلو وروسته ښوونکی نوی لوست پر تخته ليکي او په لوړ آواز يې لولي او زده کوونکي يې هم ورپسې بدرګه کوي.<br>بيا يو يو زده کوونکي د تختې مخې ته راغواړي او د (اشهد) کلمه پرې | په لوست کې فعاله ونډه اخلي. |

| | | |
|---|---|---|
| | تکراروي څو ښه په ذهنونو کې ځای ونیسي.<br>بیا د زده کوونکو پاملرنه دېته را اړوي چې د طیبې کلمې او د شهادت د کلمــې د تلفظ کولو توپیر سره وپیژني هغه دا چې په طیبه کلمه (لا الــه الا الله محمــد رسول الله) کې د محمد دال پېښ اما په (اشهد ان لا اله الله واشــهدان محمــدا رسول الله) کې د محمد دال زبر لري ځکه د آن کلمه پرې داخله شویده. | |
| کورنۍ دنده په ښه توګه ترسره کوي. | **کورنۍ دنده:**<br>په پای کې زده کوونکو ته کورنۍ دنده ورکوي: چې طیبه کلمــه او د شــهادت کلمه په خپلو کتابچو کې ولیکي او حرکات (زبر، زیر، پیښ، شد او غړونــدی) ورکړي څو د دواړو توپیر معلوم شي. | |

**دوه ویشتم: لوست**

## سرلیک: درود شریف (۱)

**مخ: ۴۵**

**وخت: یو درسي ساعت**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- د لمانځه درود شریف سم وویلای شي.
- درود شریف هجا کړای شي.
- د درود شریف په معنا وپوهېږي.
- درود شریف ولیکلای شي.
- د درود له ویلو خوند واخلي.

**اړینه پوهه:**

**د ځېنو کلمو معناوې:**

**اللهم:** ای الله.

**صل:** رحمت وکړه.

**علی:** پر

**آل:** کورنۍ.

**«انک حمید مجید»:** یقیناً ته ستایل شوی او ډېر لوی یې.

**کماصلیت:** لکه څنګه دې چې رحمت کړی و.

**«اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلیٰ مُحَمَّدٍ وَ عَلیٰ آلِ مُحَمَّدٍ کما صلیت علی ابراهیم وعلی آل ابراهیم انک حمید مجید».**

ژباړه: ای الله درود (رحمتونه) وکړه په محمدﷺ او د محمدﷺ په کورنۍ او اهل باندې لکه څنګه دې چې رحمتونه کړي دي پر ابراهیمعليه السلام او په کورنۍ او اهل د ابراهیمعليه السلام یقیناً ته (ای الله) ستایل شوی او ډېر لوی ذات یې.

دغه درود شریف ته ابراهیمی درود ویل کېږي. او کله چې دغه آیت: (إِنَّ اللَّهَ وَمَلَائِكَتَهُ يُصَلُّونَ عَلَى النَّبِيِّ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا صَلُّوا عَلَيْهِ وَسَلِّمُوا تَسْلِيمًا) نازل شو یعنې چې الله او د الله پرښتې پر نبی کریمﷺ باندې درود وایي...... نو صحابه وو پوښتنه وکړه چې موږ په تا باندې څرنګه درود ووایو؟ نو نبی کریمﷺ دغه «درو شریف» وروښود.

په ټول عمر کې یو ځل درود شریف ویل واجب دي او تکرارول یې سنت دي.

او کله چې د نبي کریمﷺ مبارک نوم یاد شي او اوریدونکي درود پرې ونه وایي نو نبی کریمﷺ د هغه په هکله د هلاکت دعا کړې ده.

او په بل حدیث شریف کې راځي: من صلی علی واحدة، صلی الله علیه وملائکته سبعین صلوة.

یعنې نبی کریمﷺ وایي څوک چې یو ځل په ما درود ووایي، الله او د الله ملایکې اویا ځله په هغه درود وایي. رواه احمد بن حنبل من حدیث عبدالله ابن عمررضي الله عنه.

**د لوست مرستندوی توکي:** درسي کتاب، قلم، کتابچه، تباشیر، تخته او داسې نور.

**د تدریس طریقه:** تشریحي، سوال او ځواب ګروپي او داسې نور.

| وخت | د ښوونکي فعالیت | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| مقدمه<br>۵دقیقې | ښاغلی ښوونکی له مقدماتي چارو وروسته د تېر لوست ارزونه کوي.<br>● څوک کولای شي چې د شهادت کلمه ووایي؟<br>● څوک کولای شي چې د شهادت کلمه هجاء کړي؟<br>● د شهادت کلمه څوک ژباړلای شي؟<br>وروسته ښوونکی د نوي لوست د سرلیک په هکله پوښتنه کوي وایي:<br>ایا د لمانځه درود شریف مو زده دی؟ | مقدماتي چارې په ښه توګه ترسره کوي.<br><br>پوښتنو ته ځوابونه ورکوي. |
| د لوست بهیر | بیا ښوونکی درود شریف په تخته لیکي او لوست پیلوي او لوست په لوړ او جګ آواز وایي او زده کوونکي یې ورپسې تکراروي.<br>بیا یې په څو زده کوونکو باندې وایي او پرې هجا کوي یې هم او حرکات (زبر، زیر، پیښ، شد، غړوندی، اشباعي زبر او زیر (چې په ډګه خوله ویل کېږي) هم ورښيي. | لوست تکراروي. |
| | **ارزونه:**<br>بیا د زده کوونکو ارزونه کوي:<br>۱ــ درود شریف د کتاب له مخې څوک ویلای شي؟<br>۲ــ درود شریف په هجایي او رواني توګه ووایئ؟ | ځوابونه وایي. |

**درویشتم: لوست**

## سرلیک: درود شریف (۲)

**مخ: ۴۷**

**وخت: یو درسي ساعت**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- درود شریف د کتاب له مخې وویلای شي.
- درود شریف له یاده وویلای شي.
- د درود شریف کلمې هجا کړي.
- د درود شریف په معنا وپوهېږي.
- د درود شریف په فضیلت وپوهېږي.
- له درود شریف سره يې مینه پیدا شي.

**اړینه پوهه:**

**د ځینو کلمو معناوې:**

درود: رحمت او مهرباني.

اللهم بارک: ای الله برکت واچوې.

کما بارکت: لکه څنګه دې چې برکت اچولی.

«اللهم بارک علی محمد وعلی آل محمد کما بارکت علی ابراهیم وعلی آل ابراهیم انک حمید مجید».

ژباړه: ای الله برکت واچوې پر محمدﷺ او په کورنۍ د محمدﷺ باندې لکه څنګه دې چې برکت اچولی په ابراهیم‌علیه‌السلام او د ابراهیم‌علیه‌السلام پر کورنۍ باندې.

**د لوست مرستندوی توکي:** درسي کتاب، قلم، کتابچه، تباشیر، تخته او داسې نور.

**د تدریس طریقه:** تشریحي، سوال او ځواب ګروپي او داسې نور.

| وخت | د ښوونکي فعالیت | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| مقدمه ۵دقیقې | ښاغلی ښوونکی له مقدماتي کړو وړو وروسته د تېر لوست ارزونه کوي.<br>• څوک ویلای شي چې د لمانځه درود کوم دی؟<br>• درود شریف څوک له یاده ویلای شي؟<br>• د درود شریف دا کلمې: اللهم، صل، محمد، کما صلیت، آل - څوک هجاء کولی او لیکلی شي؟ | مقدماتي چارې په ښه توګه ترسره کوي.<br><br>پوښتنو ته ځوابونه ورکوي. |
| د لوست بهیر | له ځوابونو اورېدلو وروسته د زده کوونکو پاملرنه نوي لوست ته را اړوي او له زده کوونکو څخه د نوي لوست د سرلیک په هکله پوښتنه کوي: د لمانځه دویم درود د لومړي درود سره څه توپیر لري؟<br>وروسته ښوونکی نوی لوست پر تخته لیکي او لوست په لوړ آواز وايي او زده کوونکي يې ورپسې تکراروي. بیا زده کوونکي په دوو ډلو ویشي څو یو له بل څخه د سیالۍ په توګه پوښتنې او بحثونه وکړي. | لوست تکراروي. |
| | **ارزونه:**<br>بالآخره ښوونکی زده کوونکي ارزوي:<br>۱ـــ د لمانځه دویم درود ووایئ؟<br>۲ـــ دویم درود له لومړي درود سره څه توپیر لري؟<br>۳ـــ درود له یاده څوک ویلای شي؟<br>۴ـــ د کتاب ارزونه حل کړئ؟ | ځوابونه وايي. |

**څلور ویشتم: لوست**

## سرلیک: دعا او سلام

**مخ: ۴۹**

**وخت: دوه درسي ساعت**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- د لمانځه دعا او سلام په سمه توګه ولوستلای شي.
- دعا او سلام هجا کړای شي.
- د دعا او سلام په معنا وپوهېږي.
- دعا او سلام په یادو ووایي.
- د لمانځه له دعا سره یې مینه او اړیکه ټینګه شي.

**اړینه پوهه:**

**د ځینو کلماتو معناوې:**

ربنا: ای زموږ پالونکیه!

آتنا: راکړه موږ ته.

حسنة: نیکي.

قنا: موږ وساتې.

النار: اور.

«اللهم ربنا آتنا فی الدنیا حسنة وفی الآخرة حسنة وقنا عذاب النار».

ژباړه: ای الله زموږ پالونکیه راکړه موږ ته په دنیا کې نیکي (ښه ژوند) او په قیامت کې نیکي (جنت) او وساتې موږ د اور له عذاب (دوزخ) نه.

السلام علیکم ورحمة الله ، السلام علیکم ورحمة الله.

ژباړه: سلامتیا او د الله رحمتونه دې وي پر تاسې باندې.

دغه دعا نبی کریمﷺ ډېره افضله او غوره معرفي کړې ده. ځکه سره له دې چې ډېره لنډه دعا ده، خو دنیا او آخرت یې دواړه رانغښتې دي. او دا دعا نبی کریمﷺ په ډېرو وختونو او ځایونو کې کړېده.

**د تدریس طریق:** تشریحي، مسابقوي، ګروپي او.........

**د لوست مرستندوی توکي:** درسي کتاب، قلم، کتابچه، د قرائت سي ډي یا کست او.....

| وخت | د ښوونکي فعالیت | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| مقدمه ۵دقیقې | ښاغلی ښوونکی له مقدماتي کړو وړو وروسته د تېر لوست ارزونه کوي. لکه:<br>• د لمانځه ابراهیمي درود څوک له یاده ویلای شي؟<br>• درود شریف په هجایي توګه څوک ویلای شي؟<br>• څوک درود شریف په روانۍ سره ویلای شي؟<br>وروسته د نوي لوست د سرلیک په هکله پوښتنه کوي وایي: د لمانځه په پای کې له سلام ګرځولو مخکې کومه دعا ویل کېږي؟<br>له ځواب اورېدلو وروسته ښوونکی د لوست سرلیک «دعا او سلام» په تخته | مقدماتي چارې په ښه توګه ترسره کوي.<br>پوښتنو ته ځوابونه ورکوي. |

| د لوست بهیر | لیکي او بیا لوست په جګ غږ سره لولي او زده کوونکي یې هم پــه لـــوړ غـــږ ورپسې تکراروي.<br>بیا یې په نوبت سره په څو زده کوونکو باندې لولي او په ځینو زده کوونکو یـــې هجا کوي او بیا یې ښوونکی په ډېره آسانه توګه ورته ژباړي.<br>بیا زده کوونکي په څو ډلو ویشي او هره ډله له بلې ډلې سره په مسابقوي توګـــه پوښتنې او بحث کوي. | لوست تکراروي. |
|---|---|---|
| | **ارزونه:**<br>بالاخره زده کوونکي ارزوي:<br>۱ـــ د لمانځه دعا په هجایي او رواني توګه ولولئ؟<br>۲ـــ د لمانځه دعا په یادو ووایئ؟<br>۳ـــ د لمانځه څخه د وتلو سلام ووایئ؟<br>۴ـــ د کتاب ارزونه حل کړئ؟ | ځوابونه وایي. |

**پنځه ويشتم: لوست**

## سرليک: د مور او پلار درناوی

**مخ: ۵۳**

**وخت: دوه درسي ساعت**

**موخې: زده کوونکي بايد:**

- لوست د کتاب له مخې ولوستلای شي.
- د لوست کلمې هجاء کړای شي.
- د مور او پلار سره مينه ولري او درناوی يې وکړي.
- د مور او پلار په نصيحت عمل وکړي.

**اړينه پوهه:**

**د ځېنو کلماتو معناوې:**

درناوی: احترام، عزت

عمل: کړنه

چلند: کړه وړه

**د مور او پلار درناوی:**

مور او پلار د اولاد اصل او بنسټ ګڼل کېږي او د اولاد مجازي پالونکي دي او ټول عمر د اولاد د آرامۍ او سوکالۍ لپاره کار کوي او ډېرې ستونزې ګالي. په ځانګړې توګه مور د اولاد لپاره ډېرې ناخوالې تېروي او ډول ډول کړاوونه او ستونزې ګالي نو ځکه نبی کريمﷺ هم د مور حقوقو ته ډېره پاملرنه کړې ده. له ابی سعيدﷺ څخه روايت دی چې «ان رجلاً قال يا رسول الله ای الوالدين اعظم حقاً. قال التی حملت بين الجنبين وارضعت بالثديين وحضنت علی الفخذين وفدته بالوالدين».

ژباړه: ابی سعيدﷺ وايي يو سړی راغی ويې ويل يا رسول الله په والدينو کې د کوم يوه حق زيات دی؟ نبی کريمﷺ وفرمايل: د هغه چا حق زيات دی چې ماشوم يې په ګېډه کې بار کړی او د سينې له منځه يې شيدې ورکړې دي او په ورنونو يې دده پالنه کړې ده او په خپل مور او پلار يې ده ته ترجيح ورکړې ده.

په يوه بل حديث کې راځي چې يو نفر نبی کريمﷺ ته راغي غوښتل يې چې جهاد ته ولاړ شي، نبی کريمﷺ ورته وويل ايا مور او پلار دې ژوندي دي؟ ده وويل هو! نو ده مبارک ورته وويل چې د مور او پلار خدمت کوه همدا ستا لپاره جهاد دی.

په يو بل حديث کې راځي چې نبی کريمﷺ وفرمايل: د مور او پلار خدمت او ورسره نيک چلن کوئ، حقوق يې اداء کوئ که څه هم دوی پر تاسو ظلم کوي دا خبره يې درې ځله تکرار کړه.

د مور او پلار حقوق بايد اداء شي که څه هم مور او پلار کافر هم وي.

الله تعالی فرمايي: او ستا رب پريکړه کړېده تاسې د بل چا عبادت مه کوئ مګر يوازې د الله. له مور او پلار سره ښه چلن وکړئ که له تاسره له هغونه يو يا دواړه زړښت ته ورسېږي، نو هغو ته اف قدرې مه وايه، مه هغو ته په قهر ځواب ورکوه بلکې له هغوی سره په درناوي خبرې کوه. او په نرمۍ او رحم سره د هغو په وړاندې مات غاړی اوسه او دا دعا (ورته) کوه چې پرودرګاره! پر دوی رحم وکړه لکه څنګه چې دوی له زړه سوي او خواخوږۍ سره په ماشومتوب کې زه پاللی وم. (۲۳ــ ۲۴ اسراء).

**د لوست مرستندوی توکي:** درسي کتاب، قلم، کتابچه، تباشیر، تخته او داسې نور.

**د تدریس طریقه:** تشریحي، سوال او ځواب ګروپي او داسې نور.

| وخت | د ښوونکي فعالیت | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| مقدمه<br>۵دقیقې | ښاغلی ښوونکی له مقدماتي چارو څخه وروسته د تېر لوست ارزونه کوي:<br>● د لمانځه دعا څوک ویلای شي؟<br>● د لمانځه څخه د وتلو (سلام) الفاظ څوک ویلای شي؟<br>له ځوابونو اورېدلو وروسته ښوونکی د نوي لوست د سرلیک په هکله پوښتنه کوي او وايي: ایا د مور او پلار درناوی لازم دی؟ | مقدماتي چارې په ښه توګه ترسره کوي.<br>پوښتنو ته ځوابونه ورکوي. |
| د لوست بهیر | له ځواب اورېدلو وروسته د نوي لوست سرلیک «د مور او پلار درناوی» په تخته لیکي او لوست په لوړ آواز لولي او زده کوونکي یې ورپسې بدرګه کوي.<br>بیا په نوبت سره له یوه یوه زده کوونکي څخه غواړي چې د ټولګي مخې ته راشي او لوست ولولي، ښوونکی ورسره مرسته کوي او هڅوي یې څو په خپلو لوستونو کې لازیار وباسي.<br>بیا د لوست کلمې: نصیحت، چلند، ادب، درناوی – ورته هجا کوي او له زده کوونکو څخه غواړي څوک دا کلمې په تخته لیکلی شي. | په لوست کې فعاله ونډه اخلي. |
| | **د لوست لنډیز:**<br>بیا د لوست لنډیز ورته وايي:<br>باید د مور او پلار سره مینه ولرو، نصیحتونو ته یې پاملرنه وکړو او په درناوی ورسره چلند وکړو او د دوی له خوښې پرته هېڅ کار ونکړو. | لنډیز ته غوږ نیسي. |
| | **ارزونه:**<br>۱ــ د مور او پلار درناوی ولې لازم دی؟<br>۲ــ د مور او پلار سره باید څرنګه چلند وکړو؟<br>۳ــ ایا د مور حقونه ډېر دي که د پلار؟ په دلیل یې روښانه کړئ؟ | ځوابونه وايي. |
| | **کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکي دې لوست په خپلو کتابچو کې ولیکي او ددې لوست تش ځایونه دې ډک کړي. | کورنۍ دنده په ښه توګه ترسره کوي. |

شپږ ویشتم: لوست

## سرلیک: د ښوونکي درناوی

**مخ: ۵۵**

**وخت: دوه درسي ساعت**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- لوست په سمه توګه ولوستلای شي.
- لوست ولیکلای شي.
- وپوهېږي چې ښوونکی پس له پلاره د درناوي وړ دی.
- پوه شي چې ښوونکی زموږ په ګټه کار کوي.
- موږ هم باید دده عزت وکړو او هر کار دده په اجازه ترسره کړو.

**اړینه پوهه:**

**د ځېنو کلمو معناوې:**

عزت: درناوی

**د ښوونکي درناوی:**

په مخکنې لوست کې موږ وویل چې مور او پلار د اولاد د بدن پالنه کوي اما ښوونکی د زده کوونکو د روح پالنه کــوي او روح د بدن په پرتله اصل دی ځکه که روح په بدن کې نه وي بدن هېڅ نشي کولای هغه مړ ګڼل کېږي.

د معلم د درناوي په هکله نبي کریمﷺ فرمایي: «انما بعثت معلماً» یعنې زه د معلم (ښوونکي) په توګه رالېــږل شــوی یــم. معلومه شوه چې معلم د پیغمبر دنده ترسره کوي.

په بل حدیث کې راځي: «اذا اراد الله بعبدٍ خیراً یفقهه» یعنې کله چې الله کوم بنده ته د ښګېنې اراده کوي نو هغه ته پوهه ور په برخه کوي. په بل حدیث کې راځي چې هغه ته د دین پوهه ورکوي.

**د لوست مرستندوی توکي:** درسي کتاب، قلم، کتابچه، تباشیر، تخته او داسې نور.

**د تدریس طریقه:** تشریحي، سوال او ځواب ګروپي او داسې نور.

| وخت | د ښوونکي فعالیت | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| مقدمــــه ۵دقیقې | ښاغلی ښوونکی له مقدماتي چارو څخه وروسته د تېر لوست ارزونه کوي. لکه:<br>● څوک ویلای شي د مور او پلار درناوی مخکې دی که د ښوونکي؟<br>● که د چا مور او پلار کافر وي ایا پر اولاد یې درناوی لازم دی که نه؟<br>له ځوابونو اورېدلو وروسته د نوي لوست سرلیک معلوموي او وایي: ایا معنــوي پلار پیژنئ؟ | مقدماتي چارې پــه ښــه توګه ترسره کوي.<br><br><br>پوښتنو ته ځوابونه ورکوي. |
| د لوست بهیر | له ځواب اورېدلو وروسته ښوونکی د نوي لوست سرلیک «د ښوونکي درناوی» په تخته لیکي او د لوست په ویلو پیل کوي، لوست په اوچت آواز لــولي او زده کوونکي یې ورپسې تکراروي.<br>بیا له څو زده کوونکو څخه غواړي چې یو یو تن د تختې مخې تــه راشــي او لوست ولولي او د لوست ستونزمنې کلمې هجا کړي.<br>بیا له څو زده کوونکو څخه غواړي چې هر یو د لوست یوه یوه کلمه ولیکي. | په لوست کې فعاله ونډه اخلي. |

| | | |
|---|---|---|
| | **د لوست لنډيز:**<br>بيا ښوونكى د لوست لنډيز ورته بيانوي:<br>ښوونكى معنوي پلار دى، پر موږ لازمه ده چې د ښوونكى سره مينه وكړو دده له اجازې پرته هېڅ كار ترسره نكړو. نصيحتونو او درسونو ته يې د زړه له كـــومې غوږ ونيسو، عمل پرې وكړو او درناوى يې په ځان لازم وبولو. | لنډيز ته غوږ نيسي. |
| | **ارزونه:**<br>**۱ـــ** د ښوونكي درناوى ولې لازم دى؟<br>**۲ـــ** معلم (ښوونكي) ته د چا نوم وركړى شوى دى؟<br>**۳ـــ** ايا ښوونكى ډېر حق لري كه پلار؟<br>**۴ـــ** ښوونكى څرنګه پلار دى حقيقي يا معنوي؟ | ځوابونه وايي. |
| | **كورنۍ دنده:**<br>له زده كوونكو څخه غواړي څو لوست په خپلو كتابچو كې وليكي او د لوســـت خاليګاوې ډكې كړي. | كورنۍ دنده په ښه توګه ترسره كوي. |

**اووه ویشتم: لوست**

## سرلیک: رښتیا ویل

**مخ: ۵۷**

**وخت: دوه درسي ساعت**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- لوست په سمه توګه وویلای شي.
- د رښتیا ویلو په ګټو وپوهېږي.
- وپوهېږي چې دروغ ویل ګناه ده.
- تل رښتیا ووايي له دروغو څخه ځانونه وژغوري.

**اړینه پوهه:**

**د ځینو کلمو معناوې:**

ګناه: د شریعت خلاف کار کولو ته وايي.

**رښتیا ویل:**

رښتیا ویل د نجات او خلاصون سبب او دروغ د هلاکت لامل ګرځي. الله تعالی فرمايي: ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُواْ اتَّقُواْ اللّهَ وَكُونُواْ مَعَ الصَّادِقِينَ﴾ [د التوبة سورت آیت ۱۱۹].

یعنې ای مؤمنانو د الله نه وویریږئ او د رښتینو خلکو سره ملګري شئ. یعنې د مسلمان ناسته پاسته باید تل د رښتینو خلکو سره وي نه د دروغجنو سره.

د نبي کریمﷺ څخه پوښتنه وشوه ایا داسې کېدای شي چې یو نفر بزدله او ډارن وي جهاد نشي کولای او مؤمن هم وي؟ نبي کریمﷺ وفرمایل هو! بیا یې پوښتنه وکړه ایا داسې کېدای شي چې یو نفر بخیل او شوم وي او مؤمن هم وي؟ نبي کریمﷺ وفرمایل هو! بیا یې وویل ایا داسې کیدای شي چې یو نفر دروغ وايي او مؤمن هم وي؟ نبي کریمﷺ وفرمایل نه داسې نشي کیدای، نو معلومه شوه چې رښتیا ویل څومره لوړ او غوره صفت دی.

څوک چې په دروغو مشهور شي بیا که هر څومره رښتیا وايي هم څوک یې په خبره یقین نه کوي. الله فرمايي: کله چې شاهدۍ ته وغوښتل شوئ، نو تاسې رښتیا ووایئ ولو که ستاسو دا شاهدي د ځانونو، والدینو او خپلو خپلوانو په زیان هم تمامېږي. او د معاملې کوم لوری که شتمن وي او که بیوزلی هم د هغه لحاظ مه ساتئ، ځکه الله له تاسې نه ډېر د هغه خیر غوښتونکی دی. یعنې د خپلو نفسې غوښتنو د پیروۍ له امله مه عدالت پرېږدئ او مه دروغ وایئ.

**د لوست مرستندوی توکي:** درسي کتاب، قلم، کتابچه، تباشیر، تخته او داسې نور.

**د تدریس طریقه:** تشریحي، سوال او ځواب ګروپي او داسې نور.

| وخت | د ښوونکي فعالیت | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| مقدمه ۵دقیقې | ښاغلی ښوونکی له مقدماتي چارو وروسته د تېر لوست په هکله پوښتنه کوي. او وايي:<br>• ایا معنوي پلار پیژنئ؟<br>• ولې د ښوونکي درناوی لازم دی؟<br>له ځوابونو اورېدلو وروسته د نوي لوست د سرلیک ټاکلو په اړه پوښتنه کوي: ایا خلاصون او نجات په رښتیا کې دی که په دروغو کې؟ تر ځواب اورېدلو | مقدماتي چارې په ښه توګه ترسره کوي.<br><br>پوښتنو ته ځوابونه ورکوي. |

| د لوست بهیر | وروسته د نوي لوست سرلیک «رښتیا ویل» پر تخته لیکي او لوست پیلوي، لوست په لوړ آواز سره وایي او زده کوونکي یې هم په لوړ آواز ورپسې تکراروي بیا یو یو تن ته امر کوي چې لوست د کتاب له مخې ووایي او ځینې کلمې یې هجاء هم کړي.<br>بیا زده کوونکو ته وخت ورکوي څو د ښوونکی څخه د لوست په هکله پوښتنې وکړي. بیا ښوونکی د ځینو کلمو لکه «رښتیا، مینه، رښتینې، همیشه، درواغ» املا پرې کوي. | په لوست کې فعاله ونډه اخلي. |
|---|---|---|
| | **د لوست لنډیز:**<br>بالآخره د لوست لنډیز بیانوي:<br>رښتیا ویل د سړي د نجات او خلاصون لامل او دروغ د هلاکت او تباهۍ لامل ګڼل شوی دی.<br>باید تل رښتیا ووایو که څه هم زموږ په زیان وي، څوک چې په دروغو مشهور شي بیا یې رښتیا خبره هم څوک نه مني. | لنډیز ته غوږ نیسي. |
| | **ارزونه:**<br>۱ــ ایا که یوځای د مرګ خطره وي هلته دروغ ویل روا دي؟<br>۲ــ ایا په ټولنه او کورنۍ کې رښتیا ویونکي قدر لري؟ | ځوابونه وایي. |
| | **کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکي دې لوست په خپلو کتابچو کې ولیکي او د لوست خالیګاوې دې ډکې کړي. | کورنۍ دنده په ښه توګه ترسره کوي. |

اته ویشتم: لوست

## سرلیک: امانتداري

**مخ: ۵۹**

**وخت: دوه درسي ساعت**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- لوست په سمه توګه ولوستلای شي.
- لوست ولیکلی شي.
- د لوست کلمې هجا کړای شي.
- د امانتدارۍ په ښیګڼو وپوهېږي.
- درک کړي چې امانتداري د مسلمانۍ نښه ده.
- پوه شي چې چا ته د راز خبره کول، هم امانت ده.

**اړینه پوهه:**

**ځینو کلمو معناوې:**

امانتداري: د امانت ساتنه

بېلګه: نمونه، مثل

**امانتداري:**

د امانتدارۍ په هکله نبی کریمﷺ فرمايي: (لا ایمان لمن لا امانة له....) یعنې څوک چې د امانت مراعات نه کوي هغه ایمان نه لري. په بل حدیث کې نبی کریمﷺ فرمايي: (المؤمن من آمنه الناس) یعنې مؤمن هغه دی چې خلک یې امین وګڼي.

الله تعالی فرمايي: (إِنَّ اللّهَ يَأْمُرُكُمْ أَن تُؤدُّواْ الأَمَانَاتِ إِلَى أَهْلِهَا) [النساء آیت ۵۸].

ژباړه: مسلمانانو! الله تاسې ته حکم کوي چې امانتونه د هغو اهل ته وسپارئ.

بل ځای نبی کریمﷺ فرمايي: «أد الا مانة الی من ائتمنک ولاتخن من خانک» یعنې امانت خپل خاوند ته وسپارئ او چا چې خیانت درسره وکړ خیانت مه ورسره کوه.

او په بل ځای کې نبی کریمﷺ د منافق په نښانو کې دا هم ګڼلې ده چې څوک په امانت کې خیانت کوي.

**د لوست مرستندوی توکي:** درسي کتاب، قلم، کتابچه، تباشیر، تخته او داسې نور.

**د تدریس طریقه:** تشریحي، سوال او ځواب ګروپي او داسې نور.

| وخت | د ښوونکي فعالیت | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| مقدمه ۵دقیقې | ښاغلی ښوونکی له مقدماتي چارو څخه وروسته د تېر لوست ارزونه کوي:<br>• څوک ویلای شي چې رښتیا څه ګټې لري؟<br>• د تېر لوست دغه کلمې «همیشه، دروغ، ګناه، رښتیني، خلک، څوک هجا کولای شي؟<br>له ځواب اورېدلو وروسته د نوي لوست سرلیک معلومولو په هلکه پوښتنه کوي وايي: امانت باید چا ته وسپارو؟ | مقدماتي چارې په ښه توګه ترسره کوي.<br><br>پوښتنو ته ځوابونه ورکوي. |
| د لوست بهیر | له ځواب اورېدلو وروسته د نوي لوست سرلیک «امانتداري» په تخته لیکي او لوست په لوړ آواز وايي او زده کوونکي یې ورپسې هم په لوړ آواز تکراروي. | په لوست کې فعاله ونډه |

| | | |
|---|---|---|
| | بیا له یوه یوه زده کوونکي څخه غواړي چې لوست د کتاب له مخې ووایـــي او دغه کلمات: (امانتداري، مسلمان، بیلګه، خاوند، خبرې، پټې، ومونـــدو) هجــا کړي.<br>وروسته یو یو زده کوونکي تختې ته راغواړي او یوه یوه کلمه پرې لیکي څو لــه املا سره روږدي شي. بیا ښوونکی یوه کلمه لکه (سپارو) اول ورته داسې بیلوي (سپا) څنګه تلفظیږي وروسته بیا پسې (رو) لیکي او ورته وایي چې اوس څرنګــه تلفظ کېږي. په همدې ډول نورې کلمې هم ورته هجا او بیلوي. | اخلي. |
| | **د لوست لنډیز:**<br>وروسته ورته د لوست لنډیز وایي:<br>امانت ساتنه د مسلمانۍ نښه ده، مسلمان په امانت کې خیانت نه کوي. په امانت کې خیانت د منافق علامه ده، که څوک چاته یوه پټه خبره وکړي د هغې ســـاتنه هم امانت ګڼل کېږي. کومه دنده چې چا ته سپارل شوې وي د هغې په ښه توګه ترسره کول هم امانت ده. | لنډیز ته غوږ نیسي. |
| | **ارزونه:**<br>۱ــ په امانت کې خیانت د چا نښه ده؟<br>۲ــ امانت ساتنه کومو شیانو ته شاملېږي؟ | ځوابونه وایي. |
| | **کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکو ته دنده ورکوي چې د لوست لنډیز په خپلو کتابچو کې ولیکي. | کورنۍ دنده په ښه توګه ترسره کوي. |

نه ویشتم: لوست

## سرلیک: پاکوالی

**مخ: ٦١**

**وخت: دوه درسي ساعت**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- لوست په سمه توګه ولوستلای شي.
- د لوست کلمې هجا کړای شي.
- وپوهېږي چې پاکوالی د ایمان څانګه (جزء) دی.
- له پاکۍ او نظافت سره مینه ولري.

**اړینه پوهه:**

**د ځینو کلمو معناوې:**

جزء: برخه، څانګه.

فرمایلي دي: ویلي یې دي.

نبی کریمﷺ فرمایلي دي: (النظافة شطر الایمان) یعنې نظافت د ایمان جزء دی. رسول اللهﷺ په یوه حدیث کې فرمایي: هر کله چې مو خپل کورونه جاروکول نو کثافات او چټلي د کورونو په دهلیزونو کې مه جمع کوئ، د یهودو سره مخالفت وکړئ، له دې حدیث څخه معلومه شوه چې باید نظافت ته پاملرنه وکړو، نه یوازې د لباس او بدن پاکۍ ته بلکې د کور، چاپېریال، ښار او ټولنې نظافت ته هم باید متوجه واوسو. همدارنګه الله تعالی فرمایي: (وَثِيَابَكَ فَطَهِّرْ * وَالرُّجْزَ فَاهْجُرْ) [المدثر آیت ۴ــ ۵].

یعنې خپلې جامې پاکې وساته او له چټلۍ نه په څنګ اوسه.

او همدارنګه الله تعالی فرمایي: (إِنَّ اللَّهَ يُحِبُّ التَّوَّابِينَ وَيُحِبُّ الْمُتَطَهِّرِينَ) [البقرة آیت ۲۲۲].

یقیناً الله مینه کوي له توبه کوونکو سره او مینه کوي له پاکانو سره.

لنډه داچې طهارت او پاکي د روغتیا ضامن هم ګڼل کېږي که غواړئ چې له ناروغیو څخه بیغمه وئ، نو نظافت ته ډېره پاملرنه وکړئ.

**د لوست مرستندوی توکي:** درسي کتاب، قلم، کتابچه، تباشیر، تخته او داسې نور.

**د تدریس طریقه:** تشریحي، سوال او ځواب ګروپي او داسې نور.

| وخت | د ښوونکي فعالیت | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| مقدمه ۵دقیقې | ښاغلی ښوونکی له مقدماتي چارو څخه وروسته د تېر لوست ارزونه کوي. لکه:<br>• څوک ویلای شي چې په اسلام کې امانت ساتنه څه درجه لري؟<br>• که څوک په امانت کې خیانت کوي ایا هغه ته منافق ویلای شو؟<br>له ځوابونو اورېدلو وروسته د نوي لوست د سرلیک ټاکلو په هکله پوښتنه کوي وایي:<br>زموږ پیغمبرﷺ د پاکوالي په هکله څه فرمایلي دي؟ | مقدماتي چارې په ښه توګه ترسره کوي.<br>پوښتنو ته ځوابونه ورکوي. |
| د لوست بهیر | وروسته د لوست سرلیک «پاکوالی» په تخته لیکي او له زده کوونکو څه غواړي نوی لوست څوک د کتاب له مخې ویلای شي. بیا که دوی ونشي کولای نو | په لوست کې فعاله ونډه |

| | | |
|---|---|---|
| | ښوونکی لوست ورته په لوړ آواز لولي او زده کوونکو ته وايي چې ورپسې تکرار يې کړي. بيا زده کوونکي په دوه ډلو وېشي څو د پاکوالي په هکله له يو او بـــل څخه پوښتنې وکړي. | اخلي. |
| | **د لوست لنډيز:**<br>بالآخره ښوونکی د لوست لنډيز ورته وايي:<br>زموږ د پيغمبر وينا ده چې پاکوالی د ايمان يوه برخه ده. موږ بايد هر وخت پـــه ځانګړې توګه په لمانځه کې د ځان، کاليو او ځای پاکوالي ته پاملرنه وکړو. | لنډيز ته غوږ نيسي. |
| | **ارزونه:**<br>۱ــ د پاکوالي او نظافت په هکله نبی کريمﷺ څه فرمايلي دي؟<br>۲ــ په لمانځه کې د کومو څيزونو پاکوالی لازمي دی؟ | ځوابونه وايي. |
| | **کورنۍ دنده:**<br>له زده کوونکو څخه غواړي څو لوست په خپلو کتابچو کې وليکي او د پاکوالی ګټې را په ګوته کړي. | کورنۍ دنده په ښه توګه ترسره کوي. |

دیرشم: لوست

## سرلیک: د خوړلو ادبونه

**مخ: ٦٣**

**وخت: دوه درسي ساعت**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- لوست په سمه توګه ولوستلای شي.
- د لوست کلمات هجا کړای شي.
- په دې وپوهېږي چې له خوراک څخه هدف څه دی.
- په دې پوه شي چې د خوراک په پیل او پای کې څه ویل کېږي.

**اړینه پوهه:**

**د ځینو کلمو معناوې:**

بسم الله الرحمن الرحیم: شروع کوم د الله په نامه چې ډېر مهربانه او ډېر رحیم دی.

الحمد لله: ټول کامله صفتونه خاص الله تعالی لره دي.

غذا: خواړه، خوراکي توکي.

**د خوړلو ادبونه:**

ټول ذي روح (د روح خاوندان) خوړو ته ضرورت لري، نو باید د انسان بیا په ځانګړې توګه د مسلمان خوراک لــه نــورو څخه توپیر ولري او مسلمان باید په دې نیت خواړه وخوري څو بدن یې کار، فعالیت او عبادت ته چمتو شي. او خوراک یې هم باید په مسنونې طریقې سره وي.

هغه داچې تر خوراک مخکې باید خپل لاسونه پرېمنځو او په «بسم الله الرحمن الرحیم» سره خوراک پیل کړو. نبی کریمﷺ یو هلک ته فرمایي: یا غلام بسم الله وکل بیمینک وکل مما یلیک: یعنې ای هلکه د الله نوم یاد کړه (بسم الله) ووایــه او پــه ښي لاس خوراک کوه او له هغه ځایه ډوډۍ وخوره چې تاته نږدې وي یعنې له خپل لوري نه خوراک کوه.

په بل حدیث کې نبی کریمﷺ فرمایي: کلوا من جوانبها ولاتأکلوا من وسطها فان البرکة تنزل فــي وســطها: یعنــې ډوډۍ د لوښي له څنګونو څخه خورئ او له منځ څخه یې مه خورئ ځکه برکت یې په منځ کې نازلېږي. او بل داچې خوراک باید په چپ لاس نه وي ځکه نبی کریمﷺ فرمایي: (لاتأکلوا بالشمال فان الشیطان یأکل بالشمال) رواه مسلم. یعنې پــه چــپ لاس خوراک مه کوئ ځکه په چپ لاس شیطان خوراک کوي.

او بل په خوراک کې باید عیب ونه نیول شي. ځکه: ماعاب رسول اللهﷺ طعاماً قط.......

یعنې نبي کریمﷺ په خوراک کې هېڅکله عیب نه دی ویلای، که به یې اشتها وه خوړل به یې او که به یې اشتها نه وه، نه به یې خوړله.

په پای کې باید ووایو: الحمد لله الذی اطعمنا و سقانا وجعلنا من المسلمین.

یعنې کامله صفات هغه الله لره دي چې په موړ یې خوراک او څښاک وکړ او موږ یې له مسلمانانو څخه ګرځولي یو. بالآخره له خوراک څخه وروسته باید خپل لاسونه ووینځو او په دستمال یې وچ کړو.

**د لوست مرستندوی توکي:** درسي کتاب، قلم، کتابچه، تباشیر، تخته او داسې نور.
**د تدریس طریقه:** تشریحي، سوال او ځواب ګروپي او داسې نور.

| وخت | د ښوونکي فعالیت | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| مقدمـــــه ۵دقیقې | ښاغلی ښوونکی له مقدماتي چارو څخه وروسته د تېر لوست ارزونه کوي:<br>• څوک ویلای شي د پاکوالي په هکله پیغمبرﷺ څه فرمایلي دي؟<br>• څوک ویلای شي د لمانځه لپاره د کومو څېزونو پاکوالی شرط دی؟<br>له ځوابونو اورېدلو وروسته د نوي لوست د سرلیک معلومولو لپاره پوښتنه کوي:<br>د خوراک په پیل او پای کې کومې کلمې ویل کېږي؟ | مقدماتي چارې پــه ښــه توګه ترسره کوي.<br>پوښـــتنو تــه ځوابونــه ورکوي. |
| د لوست بهیر | له دې وروسته د نوي لوست سرلیک «د خوړلو ادبونه» پــر تختــه لیکــي او د لوست په ویلو پیل کوي او په لوړ آواز یې لولي او زده کــوونکي یــې ورپــسې تکراروي.<br>بیا یې په څو تنو زده کوونکو لولي او بیا څو زده کوونکي په نوبت سره تختې ته را غواړي او یوه یوه کلمه ورباندې د املا په توګه لیکي څو د املا ســره روږدي شي.<br>بیا زده کوونکو ته وخت ورکوي څو یو د بل څخه د لوست په هکله او د کلمو د هجا په اړه پوښتنې وکړي. | په لوست کې فعاله ونډه اخلي. |
| | **د لوست لنډیز:**<br>بالآخره ښوونکی د لوست لنډیز ورته وړاندې کوي:<br>د خوراک په پیل کې له لاس وینځلو څخه وروسته بسم الله الرحمن الرحیم او په پای کې یې الحمد لله وایو او دغه کلمه هم راغلې ده: الحمد لله الــذی اطعمنــا وسقانا وجعلنا من المسلمین. خواړه په ښي لاس او له خپل لــوري څخــه بایــد وخورو. | لنډیز ته غوږ نیسي. |
| | **ارزونه:**<br>۱ــ د خوراک په پیل او پای کې کومې کلمې ویل کېږي؟<br>۲ــ د خوراک دری ادبونه ووایاست؟ | ځوابونه وایي. |
| | **کورنۍ دنده:**<br>بیا زده کوونکو ته کورنۍ دنده ورکوي څو لوست په خپلو کتابچو کې ولیکي او د خوراک ادبونه حفظ کړي. | کورنۍ دنده په ښه توګه ترسره کوي. |

**یو دېرشم: لوست**

## سرلیک: د څښلو ادبونه

**مخ: ۶۵**

**وخت: دوه درسي ساعت**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- لوست په ښه توګه ولوستلای شي.
- و پوهېږي چې د اوبو څښلو په پیل کې څه ویل کېږي او پس له اوبو څښلو کومه کلمه ویل کېږي.
- د اوبو څښلو ادبونه وپېژني.
- د اوبو څښلو سنت طریقه زده کړي.

**اړینه پوهه:**

**د ځینو کلمو معناوې:**

**بسم الله:** د الله په نامه پیل کوو.

**الحمد لله:** کامله او بشپړ صفتونه خاص الله ﷻ لره دي.

**ادب:** په ښو اخلاقو ځان روږدي کول.

**د څښلو ادبونه:**

کله چې موږ اوبه څښو، باید په پیل کې بسم الله ووایو، په ښي لاس یې وچښو، که اوبه په لوښي کې وي، باید اوبه وګورو چې مضر شی پکې نه وي لوېدلي، اوبه باید په درېو دمو وڅښو، په ناستې یې وڅښو، په پای کې یې الحمد لله ووایو. البته دغه ټول پکې سنت ګڼل کېږي داهم باید ووایو چې نبی کریم ﷺ فرمایي: اذا شرب احدکم فلا یتنفس فی الاناء ولاینفخ فیه: یعني کله چې یو له تاسو څخه اوبه چښي نو په لوښي کې دې نفس نه کاږي او نه دې پوکی پکې کوي.

او کله چې مو د زمزم اوبه چښلې نو هلته هم لومړی بسم الله ووایئ او په پای کې دغه دعا ویل کېږي: اللهم انی اسئلک علماً نافعاً ورزقاً واسعاً وشفاء من کل داء.

الله ﷻ فرمایي: (وَجَعَلْنَا مِنَ الْمَاءِ كُلَّ شَيْءٍ حَيٍّ) [الانبیاء آیت ۳۰].

ژباړه: او پیدا کړي مو دي له اوبو څخه هر ژوندی شي، هدف داچې څومره روح واله موجودات په نظر راځي په واسطه یا بیله واسطې له اوبو څخه پیدا شوي دی، د ژوند ماده یې اوبه دي، البته دا خبره د کل په اعتبار ده. (للاکثر حکم الکل).

**د لوست مرستندوی توکي:** درسي کتاب، قلم، کتابچه، تباشیر، تخته او داسې نور.

**د تدریس طریقه:** تشریحي، سوال او ځواب ګروپي او داسې نور.

| وخت | د ښوونکي فعالیت | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| مقدمه ۵دقیقې | ښاغلی ښوونکی له مقدماتي چارو څخه وروسته د تېر لوست ارزونه کوي:<br>● څوک ویلای شي ووایي چې د خوړلو او چښلو په پیل او پای کې څه ویل کېږي؟<br>● د خوړلو او څښلو دری ادبونه څوک ویلای شي؟<br>له دې وروسته د نوي لوست د سرلیک په هکله پوښتنه کوي:<br>د اوبو څښلو په پیل او پای کې کومې کلمې ویل کېږي؟ | مقدماتي چارې په ښه توګه ترسره کوي.<br>پوښتنو ته ځوابونه ورکوي. |

| د لوست بهیر | له ځواب اورېدلو وروسته د نوي لوست سرلیک پر تخته لیکي او لوست په لــوړ آواز سره وایي او زده کوونکي یې هم په لوړ آواز پسې تکراروي.<br>بیایې په ځو زده کوونکو وایي او بیا یو یو زده کوونکی د ټــولګي مخــې تــه راغواړي او د لوست کلمې وربانديې هجاء کوي او بیایې پرې لیکي. | په لوست کې فعاله ونډه اخلي. |
|---|---|---|
| | **د لوست لنډيز:**<br>وروسته د لوست لنډيز ورته وړانديې کوي:<br>د ښنبلو پر مهال تر ټولو دمخه بسم الله او په پای کې یې الحمد لله وایو اوبه پــه ښي لاس او په دریو دمو ښنبو، په ناسته یې ښنبو او نفس نه پکې کاږو او نه یــې پو کوو. | لنډيز ته غوږ نیسي. |
| | **ارزونه:**<br>۱ـــ د ښنبلو په پیل او پای کې کومې کلمې باید ووایو؟<br>۲ـــ د ښنبلو څو ادبونه ووایاست؟ | ځوابونه وايي. |
| | **کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکو ته دنده ورکوي چې لوست په خپلو کتابچو کې ولیکــي. او دغــه کلمې (ښنباک، ښنبلو، ښنبو، الحمد الله) هجا کړي. | کورنۍ دنده په ښه توګه ترسره کوي. |

**دوه دېرشم: لوست**

## سرليک: د سلام ادبونه

**مخ: ٦٧**

**وخت: دوه درسي ساعت**

**موخې: زده کوونکي بايد:**

- لوست په ښه توګه ولوستلی شي.
- د سلام ځواب ورکول واجب وګڼي.
- وپوهېږي چې سلام ويل ثواب لري.
- د سلام الفاظ وپيژني.

**اړينه پوهه:**

**د ځېنو کلماتو معناوې:**

سنت: سنت هغه عمل دی چې په کولو يې ثواب او په نه کولو يې ملامتيا ده، د نبی کريمﷺ طريقه.

واجب: هغه عمل دی چې په کولو يې ثواب او په نه کولو يې عذاب ورکول کېږي، خو منکر يې کافر نه دی.

السلام عليکم ورحمة الله وبرکاته: سلامتيا دې وي پر تاسو او د الله رحمتونه او برکتونه دې وي پر تاسو.

سلام: سلامتيا

ثواب: نيکه بدله

سلام ويل سنت طريقه ده، سلام بايد له خبرو څخه مخکې وي او په مسنونې طريقې سره وي په داسې توګه: السلام علـــيکم ورحمة الله وبرکاته.

نبی کريمﷺ فرمايي: سلام خپور کړئ څو ستاسو په منځ کې مينه زياته شي. نبی کريمﷺ په ښځو هم سلام ويلی دی لکه چې اسماء بنت يزيد رضي الله عنها وايي: مر علينا النبیﷺ فی نسوة فسلم علينا.

په بل حديث کې راځي: اذ القى احدکم اخاه فيسلم عليه فان حالت بينهما شجرة او جدار او حجر ثم لقيه فيسلم عليه: يعنې: کله چې يو له تاسو د خپل (مسلمان) ورور سره مخ کېږي نو په هغه دې سلام اچوي او که چېرته د دوی ترمنځ ونه يا ديوال يا تيږه پرده کېده او بيا سره مخامخ کېده نو په هغه دې سلام اچوي، له دې حديث نه معلومېږي چې بايد سلام ډېر شـــايع او خپور شي.

په بل حديث کې راځي نبی کريمﷺ فرمايي: سپور دې په پلي سلام اچوي، پلی دې په ناست سلام اچوي لږ دې پـــه ډېـــرو سلام اچوي، وړوکی دې په لوی سلام اچوي (متفق عليه).

په بل حديث کې راځي: ان اولى الناس بالله من بدأهم بالسلام. رواه ابوداود.

يعنې د الله په وړاندې د خلکو غوره د خلکو هغه دی چې خلکو ته په سلام اچولو کې مخکې والی کوي. ان تـــردې چـــې د انس‌رضی‌الله‌عنه په هکله ويل شوي چې کله به په هلکانو تېريده نو سلام به يې پرې اچاوه او ويل به يې چې نبی کريمﷺ دا کار کړی دی. يعنې په هلکانو يې سلام اچولی دی. او الله تعالی فرمايي: (فَإِذَا دَخَلْتُم بُيُوتًا فَسَلِّمُوا عَلَى أَنفُسِكُمْ تَحِيَّةً مِّنْ عِندِ اللَّهِ مُبَارَكَةً طَيِّبَةً).

ژباړه: کله چې کورونو ته ننوځئ نو خپلو کسانو ته سلام اچوئ داسې سلام چې ثابت دی د الله لـــه لـــوري برکتنـــاک او پاکيزه.

**د لوست مرستندوی توکي:** درسي کتاب، قلم، کتابچه، تباشیر، تخته او داسې نور.

**د تدریس طریقه:** تشریحي، سوال او ځواب ګروپي او داسې نور.

| وخت | د ښوونکي فعالیت | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| مقدمه<br>۵دقیقې | ښاغلی ښوونکی له مقدماتي چارو وروسته د تېر لوست ارزونه کوي. لکه:<br>● څوک کولای شي د څښلو ادبونه ووایي؟<br>● څوک ویلای شي د څښلو په پیل او آخر کې کومې دعا وې ویل کېږي؟<br>● څوک ویلای شي اوبه په څو دمو څښل کېږي؟<br>له ځواب اورېدلو وروسته د نوي لوست د سرلیک معلومولو په هکله پوښتنه کوي: سلام اچول څه حکم لري؟ | مقدماتي چارې په ښه توګه ترسره کوي.<br>پوښتنو ته ځوابونه ورکوي. |
| د لوست بهیر | له ځواب اورېدلو وروسته د نوي لوست سرلیک «د سلام ادبونه» په تخته لیکي او لوست پیل کوي او په لوړ آواز یې لولي، زده کوونکي یې هم په لوړ آواز ورپسې لولي. وروسته زده کوونکي په نوبت سره د تختې مخې ته راغوړي او لوست پرې تکراروي.<br>له هغه وروسته په ځېنو زده کوونکو د لوست ځنې کلمې هجاء کوي.<br>وروسته ښاغلی ښوونکی زده کوونکو ته د سلام ادبونه او د هغو مراعاتولو په هکله په ساده ژبه معلومات ورکوي.<br>بیا له زده کوونکو څخه غواړي چې د سلام د ادبونو په هکله یو دبل سره خبرې وکړي او سلام اچول او ځواب ورکول دې عملي تمثیل کړي. | په لوست کې فعاله ونډه اخلي. |
| | **د لوست لنډیز:**<br>وروسته د لوست لنډیز ورته وړاندې کوي او وایي:<br>سلام اچول سنت کار دی او ځواب یې واجب دی. الفاظ یې دادي: السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته. | لنډیز ته غوږ نیسي. |
| | **ارزونه:**<br>۱ــ د سلام الفاظ کوم دي؟<br>۲ــ د سلام درې ادبونه بیان کړئ؟ | ځوابونه وایي. |
| | **کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکو ته دنده ورکوي چې لوست په خپلو کتابچو کې ولیکي. | کورنۍ دنده په ښه توګه ترسره کوي. |

**دری دېرشم: لوست**

## سرلیک: د لارې ادبونـه

**مخ: ۶۹**

**وخت: دوه درسي ساعت**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- لوست په سمه توګه ولوستلای شي.
- د لوست کلمې هجا کړای شي.
- د لارې په ادبونو وپوهېږي.
- لوست په خپلو کتابچو کې ولیکي.

**اړینه پوهه:**

په قرآن کریم کې الله تعالی د لقمان حکیم څخه یادونه کوي چې لقمان خپل زوی ته د نورو نصیحتونو په شرحه کې دا هـم وویل: «واقصد فی مشیک» په خپل تګ کې میانه روي کوه. هدف داچې کله په لار ځو باید نه ډېر تیز لاړ شو او نـه ډېـر ورو.

بل د لارې ادب دادی چې کله په لار ځو، نو باید له مشرانو څخه مخکې لاړ نشو، ان تر دې په حدیث کـې راځـي: مـن عقوق الولد لوالده ان یدعوه باسمه وان یتقدمه فی المشی.

یعنې څوک چې خپل پلار په نامه بولي او یا له خپل پلار څخه په لاره کې مخکې ځي هغه هم د عاق په ډله کې راځي.

په بل حدیث کې راځي: فاذا أبیتم الا المجلس فاعطوا الطریق حقه، قالوا وما حقه. قال غض البصر وکف الاذی ورد السلام والامر بالمعروف والنهی عن المنکر.

یعنې کله چې په لارو کې له مجلس څخه نا چارې ده نو بیا لارې ته خپل حق ورکړئ. صحابه وو وویل: له نامحرمو څخـه سترګې ښکته کول، چاته ضرر او ځور نه ورکول، د سلام ځواب ورکول، په نیکیو امر او له بدیو څخه منعه کـول د لارې حق دی.

**د لوست مرستندوی توکي:** درسي کتاب، قلم، کتابچه، تباشیر، تخته او داسې نور.

**د تدریس طریقه:** تشریحي، سوال او ځواب ګروپي او داسې نور.

| وخت | د ښوونکي فعالیت | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| مقدمـه ۵دقیقې | ښاغلی ښوونکی له مقدماتي چارو وروسته د تېر لوست ارزونه کوي:<br>● څوک ویلای شي چې سلام ورکول او د سلام ځواب ورکول څه حکم لري؟<br>● د سلام الفاظ څوک ویلای شي؟<br>● کافرانو ته سلام اچول روا دي که نه؟<br>له ځواب اورېدلو وروسته د نوي لوست د سرلیک په اړه پوښتنه کوي او وايي:<br>ایا د لارې ادبونه پېژنئ؟ | مقدماتي چارې پـه ښـه توګه ترسره کوي.<br>پوښتنو ته ځوابونه ورکوي. |
| د لوست بهیر | وروسته د نوي لوست سرلیک په تخته لیکي «د لارې تللو ادبونـه» بیـا نـوی لوست په لوړ آواز وايي او زده کوونکي یې په لوړ آواز ورپسې تکراروي او بیـا یې په نوبت سره په زده کوونکو وايي، څو ټول زده کوونکي پرې پوه شي.<br>بیا زده کوونکي په څو ډلو ویشي او هرې ډلې ته دری دری کلمې ورکوي څـو | په لوست کې فعاله ونډه اخلي. |

| | | |
|---|---|---|
| | هغه کلمې هجاء کړي او په خپلو کتابچو کې يې وليکي.<br>وروسته زده کوونکو ته وخت ورکوي څو خپلې پوښتنې له ښوونکي څخه مطرح کړي او ښوونکی په ډېره خوږه او نرمه لهجه ځوابونه ورکوي. | |
| | **د لوست لنډيز:**<br>وروسته د لوست لنډيز ورته وړاندې کوي او وايي:<br>بايد د لارې په ښي لوري ولاړ شو، په لاره کې څوک ونه ځوروو. او پـــه نـــورو سلام واچوو. | لنډيز ته غوږ نيسي. |
| | **ارزونه:**<br>په پای کې زده کوونکي ارزوي:<br>۱ـــ د لارې د ادبونو څخه دری ادبونه بيان کړئ؟<br>۲ـــ که په لاره کې کيناستلو ته مجبور شو بايد څنگه د لارې حقونه اداء کړو؟<br>۳ـــ لقمان حکيم يې خپل زوی ته د لارې په تللو کې څه نصيحت کړی دی؟ | ځوابونه وايي. |
| | **کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکو ته دنده ورکوي څو لوست په خپلو کتابچو کې وليکي. | کورنۍ دنده په ښه توگه ترسره کوي. |